

الحمد لله که درین زمان
کتاب فرخنده عنوان

# ګلدستهٔ

# مدینه مُنَوَّره

## اول حِصّه

ډ نعتونو او په آخر کښې د جُمعې خطبه

تصنیف


خادم الاسلام حاجی محمّد امین عفی عنه
حاجی اباد (ترنګزائی) ډاکخانه عمرزئی. چارسده پشاور
خوره ؤنکے



شائع کرده

نورانی کتب خانه، بازار عمرزئی
تحصیل وضلع چارسده

نور کتب خانه بازار عمر زئی هری چند روډ امیر خان مارکیټ ،ایم طاهر جان ثانی

قیمت: /20روپے

بسم الله الرحمن الرحيم

رَبِّ يَسِّرْ وَتَمِّمْ بِالْخَيْرِ

اَللّٰهُمَّ صَلِّ وَسَلِّمْ وَبَارِكْ عَلٰى سَيِّدِنَا وَمَوْلٰنَا مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى آلِ سَيِّدِنَا وَمَوْلٰنَا مُحَمَّدٍ بِعَدَدِ عِلْمِكَ وَ حِلْمِكَ وَعَدَدَ خَلْقِكَ وَرِضَاءِ نَفْسِكَ وَزِنَةَ عَرْشِكَ وَمِدَادِ كَلِمَاتِكَ وَاَعْطِهِ الْوَسِيْلَةَ وَالْفَضِيْلَةَ وَالدَّرَجَةَ الرَّفِيْعَةَ وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَّحْمُوْدَ ِالَّذِيْ وَعَدْتَّهٗ اِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيْعَادَ ٥

اما بعد فنقول :- پس دا يو څو مدحې دَ جناب سيّدنا مصطفیٰ اشرف الانبياء منشأ عالم محمّد صلى الله عليه وسلم دَ پاره دَ چهاپ کولو ماور کړے. اُميد دے چه په درګاه دَ رب العزة کښے منظور شي.

## نعت شريف

اے شاهِ مدينه فزون له بدرِ منيرا
که ګه په لبو لعلو کړه پُرسان له فقيرا
سپين مخ دِ وَالضُّحیٰ مثلِ خورشيد که تجلے



واليل دے آلول دواړه زلفان په عبيرا
خوبان دے خادمان ئې سلطان دَ خوبانو
يوسُفِ کنعانی نه په سل حُله کثيرا
ملک دے دَ فلک دی همګی حلقه بګوش
جبريلؑ په خادمئ ستا دے خوشحاله ضميرا
په مسجدِ اقصیٰ کښے صف آرای مرسلين
په لامکان دے شوے ملاقات له قديرا
بازو دَ شفاعت به کُشاده کړې په محشر
ګويا چه شی کل واړه مرسلان په نصيرا
مسکين محمّد امين شولو دير تنګ په پيښو
وطن ئې مدينه شه چه شی خلاص له سعيرا

## نعت شريف

نازبين نازنين دلبرين ئې سرداره
محبوبِ رب العلمين ئې سرداره
الله پاک په مخ والضحیٰ ستا قسم خوری
دَ مَا وَدَّعَكَ به تسکين ئې سرداره
دَ نورِ الٰهی نه نور ستا پيدا دے
څه بے حده خدائے ته قرين ئې سرداره
خلعت دَ طٰهٰ تا سره دير ښه ښکاري
زيبا دير په شال دَ يٰسٓ ئې سرداره

همه مرسلان به گویا په نفسي وي
شفیع الامم یوم الدین ئے سرداره
محفل د نبیانو کښې شمعه د نوی ئے
سیّد او سروری بهترین ئے سرداره
والله بے لتائے آقا بل ځوک نیشته
آقا ته د محمد امین ئے سرداره

## نعت شریف

زه گدا یم د هغې سردارِ مدینه — ما خادم کړے الله د دربارِ مدینه
زه گدا یم د هغې باد شاه د جهان — چه یادیږی عالم کښې مختارِ مدینه
چه همه مرسلان تابع د فرمان دی — زه لرمه هغه شهریارِ مدینه
چه ئے کړو تے مزیّن تاج په سر د لولاک دے — زه لرمه هغه تاجدارِ مدینه
چه نفسي نفسي کاندے صدا کل نبیان — اُمّتی به وائی شهسوارِ مدینه
په محبت سره ټول او وایئی درود — چه خوشحاله شي روح د نګارِ مدینه
لاس اوچت کړی چه مونږ ولہ بوزی خدائے — شي نصیب م زیارت د دلدارِ مدینه

ځوچه کړزے جوندے محمد امین
جوړه وه تل په مینه اشعارِ مدینه

## نعت شریف

که ایمان غواړے قربانی شه له قرانه ځنې
قران رهبر کړه چه خبر شے له ایمانه ځنې



د خدائے قرآن په سر او سترګو کړه منظور مؤمنه
خدائے راضی کیږی په قران له مسلمانه ځنې
په پیروی د دے قران به خپل مولا له وړ شے
هم به واصل شے له نبی آخر زمانه ځنې
رسول الله د مدینے به ډیر خوشحاله شی درنه
که مخ تا و نکړے د قران د خدائے فرمانه ځنې
که د قرآن خیسته قانون ته د کړدن کیخوده
سرفرازی به د نصیب شی له سبحانه ځنې
دغه قران به دے رسا کړی تر الله جل هم نبی ص
په دے قرآن به امان بیا مومی شیطانه ځنې
ورځ د محشر کښے چه نبی قران پلاس او دریږی
شکایت وکړی به خپل قوم له خپل زبانه ځنې
وائی به خدایه چه داستا قران پرے ایخے وو دوئی
قران ته ئے شا وه تکبر او له طغیانه ځنې
مسلمانانو مونږ دے خدائے له داسے قومه نکړی
خدائے دے امان کړی مونږ همه له د خسرانه ځنې
د خدائے د پاره دعا خوار محمد امین ته وکړے
چه پاتے نه شی د نبی له گلستانه ځنې

## نعت شریف

یادیږی م حرم د خوږ جانان د مدینے — قربان له مدینے
آرزو لرم په زړه کښے هر زمان د مدینے — قربان له مدینے

بیا را ولے پما الله هغه یوم سعید، بهتر له هزار عید
چه زمه په سفریمه روان دَمدینے قربان له مدینے
شوم تنګ په پېښور کښے مدینه کړے څماکور مقصود نه لرم نور
په مخ دَ حبیب دُورم کړے ارمان دَمدینے قربان له مدینے
زاهد که جنت غواړی مبارک دِ وی ورته دا سوال کوم درته
خادم کړے ما په فضل جاودان دَمدینے قربان له مدینے
دیرخوښ یم پا برهنه سرسر تورچه ورله څم هزار حُله که مرم
قبول م دا دفتن دے په چشمان دَمدینے قربان له مدینے
بو څل غلے پنجرے ته کریبان سیرِ اُو دریدے به زارزاری اُوجریدے
چه اَلسّلامُ عَلَیکَ یا سلطان دَمدینے قربان له مدینے
بیا راغو پېښوری نه مخ تورن محمد امین اے شاهِ نازنین
جُدا ے نکړے بیا له ګلستان دَمدینے قربان له مدینے

## نعت شریف

نازله خدائے قرآن کړلو پشانِ محمدؐ صلی الله علیه وسلم
په خپله مولا مدحه خوانِ محمدؐ
خلعت دَ طٰهٰ ئے څه زیب په بدن که
چه نیشته ثانی دَ سامانِ محمدؐ
چه شال دَ یٰسٓ په اوګو باندے خور کړی
ملک دَ فلک شی قربانِ محمدؐ
چه تاج دَ لولاک پاس په سر باندے کیدی



کوی حورو غلمان ارمانِ محمدؐ
تیاره ئے دَ کفر په یو دم ړنړا کړه
ښکاره چه شو سپین مخ تابانِ محمدؐ
په ورځ دَ جزا به بلند او بالا وی
له عرشِ عظیمه نشانِ محمدؐ
په ورځ دَ محشر چه عالم په غوغا وی
کړی محمد امین به بیانِ محمدؐ

## نعت شریف

اے ستا په مخ پیدا شوه دَ شمس قمر جلوه ګری
سپارلے خدائے ده تا ته جُمله خوبانو سروری
اے مشعلِ بزمِ رُسل اے پیشوا هادی السُّبل
در ګلشنِ توحید ګل ئے در کمالِ بهتری
اے بحرِ علم من لَدُن اے سرورِ هر انجمن
ګنجینهٔ اسرارِ کُن والله عجائب ګوهری
اے وردِ بوستانِ هدا رښتیائی محبوبِ خدا
خوبان همه از تو فدا حقًا مزین دلبری
مخ وَالضُّحٰی زیبا لری ګیسو اِذَا یَغشٰی لری
خلعت په تن طٰهٰ لری مازاغ دِعینین آثری
چون تو به میدانِ حشر آئی برون بسته کمر،
شالِ شفاعت کړے په سر عاصیان ته شو ګل خوشتری

سر کردہ ئے تر دامنان محمدﷺ امین ډیر ناتوان
اے سیدِ ھر دو جھان غواړی لتا نہ یاوړی

## نعت شریف

واللہ یمہ گدا محمدی محمدی
لرم پہ زړہ سودا محمدی محمدی
دنړا شو کل جھان لاړہ تیارہ دَ ضلالت
جلوہ چہ شوہ پیدا محمدی محمدی
لہ جنت الفردوس نہ م دہ خوخہ مدینہ
قسم یمہ فِدا محمدی مُحمدی
زاھد کہ جنت غواړی مبارک دِ وی ورتہ
واللہ یمہ شیدا محمدی محمدی
رادو کړئ دَ محشر تکو پہ لوړے دَ کوثر
قسمت شو ھویدا محمدی محمدی
محمدا امینہ تا دے پہ آبرو دَ محمدؐ
تل اولری فِدا محمدی محمدی

## نعت شریف

سردارہ دَ عربو وَ دَ عجمو سیّدا
مختارہ دَ قریشو ھاشمی محمدا
حیستہ دَ یثرب تال ستا پہ سر خوند کہ یا نبیؐ



ھر خسروی نامدار دے ستا دَ در گدا
شُغلو دَ والضحیٰ مخ ستا روخان کړو کل جھان
بیشکہ چہ ستا نور دے مِنَ النُّورِ خُدا
سُنبل دی کہ عنبر دی داکلہ برابر دی
زُلفانِ دے وَ الَّیل ستا خوشبوئی لری جُدا
تا نہ سعی شجر کا لتا نطق حجر کا
داکلہ بل بشر کا بے لتا نہ احمدا
پہ خلعتِ طٰہٰ چہ کړے شال دَ یثرب خور
پہ وصف ئے حیران شم عجب خوند کہ پیدا
ھجران خودے سورے کړو پورہ محمدا امین
روح او بدن ئے تا نہ زر وارے شہ فِدا

## نعت شریف

یا نبی اللہ تہ ئے سردار اعلیٰ تاجدارہ
یا صفی اللہ تہ ئے سردارِ اعلیٰ تاجدارہ
تاج دَ لوک خہ زیب کہ چہ پہ سر دے وی
یا نجی اللہ تہ ئے سردار اعلیٰ تاجدارہ
بحرِ کرم نورِ ظلم مختار دَ کل عالم ئے
ابطحیؐ اللہ تہ ئے سردار اعلیٰ تاجدارہ
حور و غلمان جن و انسان ستا ثنا خوان جُملگی
یا ولیؐ اللہ تہ ئے سردار اعلیٰ تاجدارہ

شو مزیّن ستا په نوي عرشِ معلّٰی یا نبی
زمزمې الله ته ئې سردار اعلیٰ تاجداره
ستا دَ در آرزو لري عاصی محمدؐ امین
هاشمی الله ته ئې سردار اعلیٰ تاجداره

## نعت شریف

چه پیدا په جهان ستا بشر شو نبیؐ
منور منور شو نبیؐ
چه پیدا شو له فیضه دِ دواړه جهان
بهره ور بهره ور بهره ور شو نبیؐ
په شعاع دَ جمال ستا جهان جُمکې
جلوه گر جلوه گر جلوه گر شو نبیؐ
چه آواز دَ راتلو ستا ابلیس واوریدُ
خاک پسر خاک پسر خاک پسر شو نبیؐ
چه پیدا په کوم دم شوے هر یو بُت پرست
دربدر دربدر دربدر شو نبیؐ
په خوشبو دَ زلفانو ستا کون و مکان
مُعطّر معطّر معطّر شو نبیؐ
واړه توره تیاره دَ جهان ستا په مخ
مثلِ نور مثلِ نور مثلِ نور شو نبیؐ
ستا له هجرانه تنګ له لحدنه پما



پیښور پیښور پیښور شو نبیؐ
ستا په مدحه کم بخت محمدؐ امین
بختور بختور بختور شو نبیؐ

## نعت شریف

مرحبا سرداره دَ کونینو محبوبِ خُدا
اے قریشی هاشمی مکی مدنی سیّدا
مرحبا اے سروِرِ خیلِ رُسل زیبا نبی
نشته دے ثانی دَ نورانی جمال ستا احمدا
ستا په نسبت دلبرے خوبی بلند پایه شولو
جملګی خوبان کنعان تا نه قربانے فِدا
ستا په فرقت شو ستو مان خشک کړیان حزین
روحه دَ جمله جهان کوم دم چه ته ترے شو جُدا
ستا خطاب اسرٰی بعبدہٖ له قرآن کریم
تا سره خلعت دَ طٰهٰ خوند کوی ډیر بے حدا
سرفرازانِ جهان جمله غلامان ستا وینم
پورته له اسکندر و دارانه ستا دَ دَر ګدا
محمدؐ امین ستا دَ فقیرئ په نسبت کړی فخر
دا فخرئ ستا دَ فقیرئ نصیب شه سرورا

اَللّٰهُمَّ اِنَّکَ اَمَرْتَ بِالدُّعَآءِ وَقَضَيْتَ عَلٰى
نَفْسِكَ بِالْاِجَابَةِ وَاِنَّکَ لَا تُخْلِفُ الْمِيْعَادُه

## نعت شریف

پلار و مور م تا نه شه قربان محمد مصطفیٰ
قربان محمد مصطفیٰ قربان محمد مصطفیٰ

تنک په پیښور کښې شوم یا نبی فریاد رس
ستا حرم یاد یګی م هر آن محمد مصطفیٰ

بے لتا خو نیشته دے بل چرته کښې اسره حما
کرم ستی ستا اور دَ هجران محمد مصطفیٰ

ستا پخاطر خدائے پما بیا عید اکبری اوله
چه په سفر ستا شمه روان محمد مصطفیٰ

ستا دَ مدینے منورے په قافله کښې وے
سیرے کریان دیر سترے ستومان محمد مصطفیٰ

یو ځلے له ورایه خوښکاره منارے ستا شولے
دُور م کړه الله دغه ارمان محمد مصطفیٰ

بیا دِ په باب السلام داخل شوے کریان سیرزه
تا ته په ورو م کړے کریان محمد مصطفیٰ

څو چه وے جوندے پتام رو برو لو ستے درود
دارم وے تر ځنکدن کذران محمد مصطفیٰ

تول په محبت سره درود په حضرت اولولئ
چه خوشحال شی روح دَ مهربان محمد مصطفیٰ

تول په عاجزئ اوکړئ دا سوال چه مونږ خداے ولی
تول اوکړو زیارت دَ اعلیٰ شان محمد مصطفیٰ



تل په دے ناقص شعر کړی مدح ستا محمد امین
وے بلے روضے ته په احسان محمد مصطفیٰ

## نعت شریف

تاج دَ لولاک دِ پسر پروت په عزت خوند که نبی
شال دَ یٰسٓ او دَ طٰهٰ په خلعت خوند که نبی

چه په والشمسِ والضحیٰ دِ شی رخسار ستا ئلے
شو لو واصف وی الله دغه صفت خوند که نبی

چه په وَالَّیلِ اِذَا یَغشٰی دے کړه شانہ گیسوان
په حقه تا سره دَ خدائے محبت خوند که نبی

صف آرا مسجد اقصیٰ چه شوے په شپه دَ معراج
وارو نبیانو سره ستا امامت خوند که نبی

چه دَ اَسریٰ بِعَبدِهٖ شال در پسر کړه مولا
لاس پنامه حورے غلمان دَ جنت خوند که نبی

عرش رفرف نه چه دَ لامکان په بام او ختے
قاب و قوسین او ادنیٰ دِ قربت خوند که نبی

په دغه هسے لوئے محفل کښې نا موری سر داره
تاله غوختنه په محشر دَ اُمت خوند که نبی

چه دَ محشر تګی روان کړے دَ کوثر په لورے
دَ کوثر تا لره په خپله قسمت خوند که نبی

والله مسکین محمد امین خودے گدا دے دَ دری

کله کدا ته خو نظر دَ رحمت خوند که نبی

## نعت شریف

څه عجبه تماشه ده شاه معراج لره سوریګی
افلاکونو کښې غوغا ده چه حضرت راروانیګی

جبرائیل ولاړ بیرون دے کړی صد صلوٰة سلام
ورسره براق میمون دے لاس ئې ایخے دے په نام
په فرمان دَ بیچګون دے په ادب کړی دا کلام
پاسه شاه بامراده خدائے دے بولی ناوختیګی
څه عجبه تماشه ده شاه معراج لره سوریګی

په خائسته نیلی بالاشه دَ زړه سره خدائے دِ بولی
مقدّس کښې نن پیشوا شه مرسلان به درته تول وی
دَ هغې محفل رنړا شه چه په ښکلو کښې دی خکلی
ستا دیدن ته ئې التجا ده په صلاة سلام ویګی
څه عجبه تماشه ده شاه معراج لره سوریګی

دَ اَسرٰی بِعَبدِهٖ شان کړه په سَرائے نازنینه
مبارک شه دا لیږهی شان له پاک رب العٰلمینه
عجیبه عزوجاهی شان درعطا شو ماه جبینه،
دَ همه حورو سودا ده شاید اوس راښکاره کیګی
څه عجبه تماشه ده شاه معراج لره سوریګی



قدوسیان ولاړ صفونه لاس په نام درته سرداره
عجب جوړ کړه جنتونه رضوان ستا دَ سیل دَپاره
مزیّن کل آسمانونه په قدم کړه ذوالوقاره
مرګړی ترمنتهٰی ده جبرئیل تا نه پاتے کیګی
څه عجبه تماشه ده شاه معراج لره سوریګی

په رف رف پورته علم کړه خائسته محبوب دَ ربه
عرش برین زیرِ قدم کړه قریشی اعلیٰ نسبه
عرشیان کل مکرم کړه په دیدن اُمّی لقبه
ستا وصال ته ئې تمنّا ده لاس په نام ولاړ زاریګی
افلاکونو کښې غوغا ده چه حضرت راروانیګی

بے ریباره روانیګه اوس په پوره ته دَ زړه سره
خه زړه ور وی نزدے کیږه ئې بللے نازېروره
په ثنا صفت ویږه ملاقی شه تر دلبره
اوس دَ لامکان هوا ده مرحبا دوی غږیګی
افلاکونو کښې غوغا ده چه حضرت راروانیګی

مرحبا مرحبا شور دے نوے له نور سره واصل شو
اوس احوال دَ سردار نور دے حُما عقل ترے کاهل شو
دَ وصال په سریر سوی دے محبت کښې دیر کامل شو
دَ مازاغ سُرمه زیبا ده چه عینین دَ پرے توریګی
افلاکونو کښې غوغا ده چه حضرت راروانیګی

مبارک دِ شه معراج هزار واره نازنینه

دَ هجران دَ درد علاج لتا غواړي ماه جبينه
چه پته نکړے مخ سراج لہ عاصی **محمد امینه**

په زړه ئے نقش روضه ستا ده ستا حرمُ پسے کړیکي
څه عجبه تماشه ده شاه معراج لہ ځي سوریکي

## نعت شریف

اے دو جهان کے سرور یا مصطفےٰ نبی جی
محبوب پاک اکبر یا مصطفےٰ نبی جی
محبوب کبریا هو کل نور اور ضیاء هو
نورِ خدا کا مظهر یا مصطفےٰ نبی جی
شمس و قمر کا جلوه هے آپ کے جمال سے
اے ماسِوا سے بهتر یا مصطفےٰ نبی جی
آدم صفی الله کو جب هوگیا نجات
تها نام تیرا لب پر یا مصطفےٰ نبی جی
سب انبیا کهینگے نفسی نفسی محشر میں
تم سب کا هوگا رهبر یا مصطفےٰ نبی جی
**محمد امین** بیچاره بلالئی یثرب کو
مسکین هے اور مضطر یا مصطفےٰ نبی جی

## نعت شریف

دل و جان مِ دواړه په حضرتؐ فدا دی : فدا دی فدا دی فدا دی



دل و جان مِ دواړه فِدا دی په حضرت
ادا دی هغه هر چه فرضِ خُدا دی
څهٔ اوکړم نسیم دَ بطحے ئے رانهٔ وړو
عرضونه مِ کړی په بادِ صبا دی
په سپو دَ یثرب کښے که شم صد شکرونه
ځکه چه مِ کړی بیشانه خطا دی
څه خوند که سفر په طرف دَ مدینے
پکښے دَ بدوانو عجیبے صَدا دی
چه هریو منزل شی ښکاره جوړ امو شی
دَ انزل دَ اربع نعرے لا سِوا دی
ناگاه چه ښکاره شی روضه دَ سردار
دَ اُوښکو ولے په گریبان دَ هرچا دی
چه باب السّلام کښے داخل مشتاقان شی
صلوٰة و سلام بیا دَ هرچا غوغا دی
روضے ته دَ حضرت چه شی روبرو بیا
دَ محشر پشان هلته کښے په جړا دی
څوک جاړی روضے ته دَ سردارِ عالم
صدیقؓ او عمرؓ ته گریان څوک جُدا دی
صدیقؓ او عمرؓ ته ورځی بیا زهرؓ ته
څوک ناست په باغچے پورے په واویلا دی
څوک تلی حرم ته جنت بقیع ته

جبل اُحد له ځوک تلی بید یادی
ناقص محبت کښې دُ **محمد امینه**
چه ځوک صادقان دي هغلته رسادي

## نعت شریف

نن دَ غفلت په خوب اُوده مسلمانان وینمه
ځکه خوشحاله هرطرف کښې دُشمنان وینمه
راله جړا راځي چه حال دَ مسلمان ګورمه
چه ترینه پاتے خاښته خکلے قران وینمه
واړو قانون دَ قران پرېښو خوار ذلیل شو ځکه
زه چه نظر کومه واړه رواجیان وینمه
رسول الله دَ مدینے ته به فریاد کومه
چه ډیر اُمت دِ دَ اِسلام نه روګردان وینمه
هغه اسلام چه وُو تازه ستا په خوګو ویلو
افسوس دے نن چه ترینه روستو نادانان وینمه
**محمد امین** وائی په دوران دَ باباجي داخواړه
چه بهره مند دَ باباجي کل مریدان وینمه





## نعت شریف

روضے منورے ته ځما تلل نصیب کړے
هم مرګ هم م بیا هلته خخید ل نصیب کړے
ما بوزه پیښور نه مدینے طیبے ته
احوال دَ فراقت م شاه ته ویل نصیب کړے
فرقت کښې دَ هغه زیات تر یوسفِ کنعانی
له ستر ګو به م وینے بهیدل نصیب کړے
لَا تَقنَطُوا چه شته دے په قران پاک کښې آیات
ځما دَ مدینے سوال تبلیدل نصیب کړے
زاهد که جنت غواړی مبارک دِ وی وی ته
ځما خو مدینه کښې اوسیدل نصیب کړے
یادیګی م ډیر باب جبرائیل باب السّلام
بیا رو برو حجرے ته م جړل نصیب کړے
په ورزے دَ محشر کښې دَ **محمد امین** مسکین
یو نعتِ نبویؐ خو آورول نصیب کړے

## نعت شریف

چه پاک رسول له دُنیا لاړه نور به څه شان پاتے شی
دَ آسمان کور به شی نسکور بیا به ویران پاتے شی
باغ دَ بوستان به په خزان دَ فنا ورک شی بالکل
نه به طوطیان نه بلبلان نه بورا ګان پاتے شی

غنچه تازه به بےمزه شی دَ نیستئ په سیلئ
نه به کاکل دَ تور سنبل نه به ریحان پاتے شی
اخر اثر دَ څنکدن به په بدن ستا راشی
واړه کارونه دَ دُنیا به دِ ویران پاتے شی
په هیڅ دارو به دِ صحت دَ بدن نه شی کُمکه
کوز کوږ به کوری ناعلاج به طبیبان پاتے شی
زړه به دِ چوی په دیر ارمان چه روانیگی ترینه
نیاز بین خامن به درنه روستو یتیمان پاتے شی
داچه تاتی دَ خپل ځان نه وینے مغرور ئے هسے
دغه بدن به دِ تخته باندے عُریان پاتے شی
بنځه دِ کُنده مال دولت چه دِ گټلے وی ځه
دا به قسمت کړی چه دِ روستو وارثان پاتے شی
چه سلیمانؑ او سکندر رغوندے شاهان دی تلی
بل په جهان کښے به کوم خان او کوم سلطان پاتے شی
نن که کوے کوه سودا چه شته دولت دَ عُمر
درنگ له به نه دغه دولت نه به دِ توان پاتے شی
دَ زړه په زخم که پټئ لگے تلوار پوے وکړه
درنگ له به نه دارو طبیب نه به دِ ځان پاتے شی
نن چه جرلے شے جرنگ چه چشمان دِ شته دے
صبا راندهٔ به دِ په خاورو داچشمان پاتے شی
الله الله وایه چه گرزی دی په خوله کښے جبه

ئے بربند - لغر ۱۲



چه اجل راشی بیا به گونگ دا ستا ژبان پاتے شی
خدایه عالی کړے درجے دَ کربوغے دَ صاحبؒ
ستا په احسان دَ ده فیضان دِ په جهان پاتے شی
واړه اولادے دے بامراد او خادلړے خاونده
ستا دَ کرم دِ په هریو باندے باران پاتے شی
محمد جمیل صاحبزاده صاحب سره دَ اولاد
کړے بهرمند چه ئے په کار جهان فیضان پاتے شی
خدایه په فخر دَ محمد مصطفیٰ شاهِ عرب
**محمد امین** دے تل ترتله مُسلمان پاتے شی

## نعت شریف

دوعالم خریدار روئے محمد صلی اللہ علیہ وسلم
دماغ فلک پُر ز بوئے محمدؐ
بصد آرزو سُرمهٔ چشم خواهم
والله خاک و خاشاک کوئے محمدؐ
کند فخر جبریلؑ بر خاک روئے
همه مرسلان از علوئے محمدؐ
کمین پایه عرش است از آستانش
فگنده سراست او بسوئے محمدؐ
به سر تاج لولاک یزدان نهاده
دو کونین نیرزد بموئے محمدؐ

بود تا قیامت سرخوش ہر آنکس
که مے نوش کرد از سبوئے محمدؐ
محمدؐ امینؐ مگردان دل وجان
زمحراب دو آبروئے محمدؐ

## نعت شریف

اے اُمّیؐ لقبا هاشمی نسبا
مرحبا مرحبا مرحبا مرحبا
اے اُمّیؐ لقبا شاهِ کون و مکان
په خاطر ستا عدم کړه علم پاک سُبحان
ستا له فیض نه شو بهروی واړه جهان
اے دَ پیدایش جُملگی سببا
مرحبا مرحبا مرحبا مرحبا
په جمال دِ ړنړا شوه دَ کفر تیاره
دَ ابلیس په توړ مخ باندے توئ شو سکاره
تا ته خدائے شفاعت دَ اُمت و سپاره
شفاعت به کوی دَ خوارانو صاحبا
مرحبا مرحبا مرحبا مرحبا
خه خوند کوی تاج دَ لولاک ستا په سر
چه په سر باندے کیخولے ستا پاک اکبر
بل دے شال دَ یٰسٓ په اوګو جلوګر



تا سره خوند کوی دَ مزمل قبا
مرحبا مرحبا مرحبا مرحبا
دَ یوسفؑ جمال باندے وو عاشقان
یو زلیخا او بل هغه پیغلې کنعان
زه لتا نه قربان شم اے شاهٔ خوبان
په والله چه ئے دَ الله محبوبا
مرحبا مرحبا مرحبا مرحبا
یا حبیبه په دوئے دَ رب العلمین،
مدینے ته طلب کړه محمدؐ امین
که هر څو دے عاصی او عاجز او مسکین
یا سردار ته ئے یاورے غُربا
مرحبا مرحبا مرحبا مرحبا

## نعت شریف

میدان کښے دَ محشر چه رانما شی محمدؐ
په اُمتی له ورایه به ګویا شی محمدؐ
نفسی نفسی به وائی همګی واړه نبیان
شفیع به په محشر کښے دَ هر چا شی محمدؐ
خائسته مزیّن شال دَ شفاعت به کړی په سر
غوختونکے دَ اُمت به له مولا شی محمدؐ
هر چا چه پیروی دَ حضرتؐ وکړه په رښتیا

هغوئ نه به خوشحاله په رښتیا شی محمدؐ

هرچا چه په اخلاص سره ویلے دے درود
هغوئ ته به نزدے په مرحبا شی محمدؐ

الله او ملائک د الله وائی پرے درود
ستا ئلے په طٰهٰ او په یٰسٓ شی محمدؐ

په شوق او محبت ورباندے اووائی درود
چه مونږ ګنهګارو نه رضا شی محمدؐ

راځئ چه مدینے منورے لره ئے ورشو
که مونږ نه مرور وی چه پخلا شی محمدؐ

محمدؐ امینه خدائے دِ مدینه کړی ستا مدفن
ملګرے دے په دغه سوال کښے ستا شی محمدؐ

## نعت شریف

اے شمعِ بزمِ انبیا قربان محمدؐ مُصطفیٰ
اے معدنِ نورے ضیا قربان محمدؐ مصطفیٰ

ستا والضحیٰ زیبا جبین جمله جهان روخان کړه
کون و مکان کښے ستا رڼا قربان محمدؐ مصطفیٰ

آوازچه د راتلو شو ستا مانړئ د کسرئ پریوتے
ټکړے شولے بُت خانه ها قربان محمدؐ مصطفیٰ

نسکور بتان شو جملګی پیدا تزلزل شو پکښے
بیرغ د اسلام شو بپا قربان محمدؐ مصطفیٰ



خسته ذلیل او خوار شو هرځائے کښے چه وو مشرکین
نوبت د اسلام شو بجا قربان محمدؐ مُصطفیٰ

هر کینه ور دشمن چه به پیدا په مقابل شو ستا
نسکور به په یکدم لتا قربان محمدؐ مصطفیٰ

په زړه سورے زخمی سینه لتا نا ابوجهل وو
لاړو جهنم ته خطا قربان محمدؐ مُصطفیٰ

چا چه محبت ستا کړو خوخ په دواړو کونو خاد شو
شو جنت الماوی ئے جا قربان محمدؐ مصطفیٰ

محمدؐ امینؔ ستا مدح خوان باصد ادب و صد عجز
دا زد مدینه التجا قربان محمدؐ مُصطفیٰ

## نعت شریف

سرداره د عربو د عجمو سیّدا
مختاره د قریشو هاشمی محمدؐا

خیسته تاج د لوک دِ په سر خوند که یا نبیؐ
هر خسروی نامدار دے ستا د دَر گدا

شغلو د والضحیٰ رخ ستا کل جهان روښان کړه
بیشکه چه ستا نور دے مِنَ النُّورِ خُدا

سنبل دی که عنبر دی دا کله برابر دی
زلفانِ دِ واللیل خوشبو لری جُدا

تا ته سعی شجر کا لتا نُطق حجرکا

دا کله بل بشر کا بې لتانه احمدا

په خلعتِ طٰهٰ چه کړې خورشالـ دَ یٰسٓ

په وصف ئې حیران شم عجب خوند کا پیدا

هجران خودِ سُورې کړه په زړه محمد امین

روح او بدن زړه وارې ئې لتانه شه فِدا

## نعت شریف

اے عندلیبِ خوشنوا وکړه په گلشنِ دا صَدا

صلّ علیه سرمدا سلّم علیه مرحبا

اوکړه په گلشن دا سُخن شکرانئې روئې سمن

صلّ علیه سرمدا سلّم علیه مرحبا

سوسن په خپل شیرین زبان وائی له شوقه دا بیان

صلّ علیه سرمدا سلّم علیه مرحبا

غنچه دَ گل په صد زبان وائی په رورو هر زمان

صلّ علیه سرمدا سلّم علیه مرحبا

یارب په هر شام وسحر په سیّدِ خیر البشرؐ

صلّ علیه سرمدا سلّم علیه مرحبا

جن و بشر شمس و قمر وائی په سیّد نامؐ

صلّ علیه سرمدا سلّم علیه مرحبا

وائی ملائک قدسیان هم حور وغلمان دَ جنان

صلّ علیه سرمدا سلّم علیه مرحبا



اے طالبِ روئې نبیؐ شیدا په گیسوئی نبیؐ

صلّ علیه سرمدا سلّم علیه مرحبا

منظور کړې مولا ځمونږ دا پُر عجز وینا ځمونږ

صلّ علیه سرمدا سلّم علیه مرحبا

اے خالقِ کل عالمین، وائی فقیر محمد امین

صلّ علیه سرمدا سلّم علیه مرحبا

## نعت شریف

حرم دَ نبیؐ په زړګی ګی م وړیګی

اُمّید دَ ورتلو م له ده ځنې کیګی

اللّٰه خو رحمٰن او رحیم او کریم دے

ځمونږ په ورتلو ئې کرم نه کمیږی

اے بادِ صبا ورشه روئې خدا که

آقاته م وایه چه نور نه صبریګی

واللّٰه ترے قربان کړم همه جنتونه

حرم دَ مدینې م دومره خوخیګی

له خدائے نه دِ غوارم په مخ نورانی ستا

تعجب چه دا قبلیده روستو کیګی

په ورځ دَ محشر کښې به شور او غوغا وی

چه راغے محمدؐ شفاعت به کیګی

په ورځ دَ محشر کښې به محمد امین

په زوره په نعتِ محمدؐ وئیلکی

## نعت شریف

سردارِ انبیاء دے آقا ځما محمدؐ
محبوب کبریا دے آقا ځما محمدؐ

سردار دَ مرسلانو مختار دَ مرسلانو
سردار او ذوالعلا دے آقا ځما محمدؐ

جبریلؑ غوندے نامدار دَ در دے خدمتګار
دا خومره سر بالا دے آقا ځما محمدؐ

لولاک په سر تاجدار په صد عزّ و وقار
په تخت دَ او ادنیٰ دے آقا ځما محمدؐ

هر څوکه مختوره یم تکتور خیرن خچن یم
بخونکے دَ خطا دے آقا ځما محمدؐ

راځئ چه ورله ورشو روان په سترګو سر شو
والله لیدلے ما دے آقا ځما محمدؐ

**محمدّ امین** فقیر په دے فقر امیر
له شوقه ننګویا دے آقا ځما محمدؐ

## نعت شریف

اے ګدائے محمدؐ ی محمدؐ شان څه لری
راځه که اورے نن په زړه دا نعت خوانان څه لری



که په رښتیا باندے شیدا فِدا ګدائی دَده
راشه چرګه تو یه وه چه دِ چشمان څه لری

مطیع حق شفیع خلق دے محمدؐ عربی
هغه مسیح چه تمنا دَ دردمندان څه لری

تاج دَ لولاک په سر، ناست په تخت دَلی مع اللّٰه
دا سے شاهی او سرداری نور سرداران څه لری

شال دَ یسٓ دِ په قبا دَ مزمّل مزه که
دا سے قبا او شال قسم خور مد رضوان څه لری

چه په خلعت دَ طٰهٰ زلفے دَ والیل خورے کړی
خوبی هم داده نور دَ دوئ کو نو خوبان څه لری

دَ والضحیٰ مخ نه که یو شغله څرګنده شوله
شمس و قمر واللّٰه خجل کړه دواړه تو آخر لری

چه په سپین مخ په تور و زلفو ئی قسم خوری مولا
صفت دَ داسے مخ او زلفو خوار انسان څه لری

**محمدّ امین** چه نعت خوان کړه خدائے دَ پاک محمدؐ
هزار شکرونه نور په زړه باندے ارمان څه لری

## نعت شریف

وجه الجمیلِ پتا ختمه زیبائی حبیبه
سترګے دِ تورے دَ مازاغ په سلائی حبیبه

سردارِ خیل رُسل سیّدِ والا عربی

مولا شکاره کړه ستا د پاره خدائی حبیبه

لاس پنامه ورته ولاړ واړه نبیان مرسلان

واړه شاهان ستا د دربار که گدائی حبیبه

اسری بعبده خطاب د مبارک شان نبیؐ

تاج د لولاک د په سر که خوشنمائی حبیبه

قسم دے تا که وے یعقوبؑ او زلیخے لیدلے

وه به ترے هیره د یوسفؑ دلربائی حبیبه

د خوار مسکین **محمد امین** داسوال د خدائے د پاره

چه ستا حرم کښے جارکړی هر صبائی حبیبه

په زړه سوړے کړه ستا هجران **محمد امین** یا نبی

ته ئے د خدائے د پاره وکړه دوائی حبیبه

---

اللهم صل علی محمد و علی آل محمد کما صلیت علی
ابراهیم و علی آل ابراهیم انک حمید مجید ط

## نعت شریف

| | |
|---|---|
| محمدؐ خیر البشر ده | ترهمه مخلوقات غوره |
| مرسلانو کښے سروره | راکړه لاس د رب د پاره |
| هاشمی نبی روئداره | د واړه کونه کښے سرداره |
| د عرب عجم نامداره | راکړه لاس د رب د پاره |
| محمدؐ احمد محموده | اے منشه د کل موجوده |
| د غمجن زړګی مقصوده | راکړه لاس د رب د پاره |



| | |
|---|---|
| اے طٰهٰ او اے یٰسٓ | اے محبوب بهترین |
| مخ د والضحیٰ حسین | راکړه لاس د رب د پاره |
| د لولاک تاج دے په سر ستا | جبریلؑ خاکروب د در ستا |
| قدسیان واړه لښکر ستا | راکړه لاس د رب د پاره |
| اے د خوږ زړګی مرهمه | مکرمه محترمه |
| اے زینت د کل عالمه | راکړه لاس د رب د پاره |
| د صدیقؓ عمرؓ عثمانؓ | د علیؓ شاه مردان |
| په خاطر اے مهربان | راکړه لاس د رب د پاره |
| د حسنؓ حسینؓ د پاره | در ته سوال کوم روئداره |
| دیر ویریګمه له ناره | راکړه لاس د رب د پاره |
| پلار او مور او کل دوستان | همګی مسلمانان |
| دادی او بخښی سبحان | راکړه لاس د رب د پاره |
| که هرڅو زه مختور یم | همګی خیرن خچن یم |
| بخښے زه ستا په لمن یم | راکړه لاس د رب د پاره |
| مختورن **محمد امین** | اے سرداره بهترین |
| وائی تاته په هر حین | راکړه لاس د رب د پاره |

## نعت شریف

هزاران صلوٰة و هزاران درود

به روح محمدؐ چو باران درود

بگوئید اے مؤمنان صبح و شام

بران دوست محبوب سبحان درود
خدا میفرستد به محبوب خود
شب و روز بے حد و پایان درود
بران نامور صدر دیوان حشر
بگوئید پیدا و پنهان درود
بران شمع بزم همه مرسلان
بود از دل و جان مایان درود
بود از **محمد امین** فقیر
بر احمد چو ریگ بیابان درود

## نعت شریف

وی داغوغا به په محشر محمد مصطفی راځي
د لولاک تاج ئے دے پر سر محمد مصطفی راځي
ملائک وړاندے روستو ځي په نوکرۍ کښې د حضرت
ځنے به وړاندے کړي خبر محمد مصطفی راځي
د یس شال کړو په سر ترینه قربان شه کل عالم
د طٰه خلعت در بر محمد مصطفی راځي
د واللیل زلفے ئے شانه په او کوکړے خورے ورے
مخ والضحی ئے جلوه گر محمد مصطفی راځي
د مزمل قبائے واغوستله شور شو په محشر
چه اوس د دوؤ کونو سرور محمد مصطفی راځي



اوس به راؤوځي کمربند د شفاعت تړلي په ملا
ورته سنبال د نور منبر محمد مصطفی راځي
گنهگاران به وائي مونږ نه زو دوزخ لره هرگز
ځمونږ غم خور ځمونږ افسر محمد مصطفی راځي
د محشر تکو ته **محمد امین** به وائي په روړو
اوس بر قسمت له د کوثر محمد مصطفی راځي

## نعت شریف

دِ خدائے دَ پاره لرے کړه مسلمه په تندئ
دا طوق د غلامۍ
ډیر بد دی سره ښکاري قاعده نه ده د سیالۍ
دا طوق د غلامۍ
ته سر په گریبانه کړه دننه او کړه خیال
په خپل گذشته حال
که ستا وو که د بل وو دا زنار د بدنامۍ
دا طوق د غلامۍ
په اصل کښې خو ستا وه سرداري نه د بل کس
دا ولے شو لے خس
بل چا در کړے نه دے مگر خپلے نادانۍ
دا طوق د غلامۍ
بچیله دِ خپل ځان کړو په شیطان باندے تالا

افسوس او واویلا

په خپله دِ سبب کړه دَ دشمن دَ خوشحالئ
دا طوق دَ غلامئ
دا خومره چه تالا کړے او تباه کړے اولت پت
دے واړه جهالت
غفلت او جهالت درته چا پیر کړه ترمرئ
دا طوق دَ غلامئ
دَ خدائے خیسته قران ته چه دِ شاه کړه په کوم دم
اخته شولے په غم
پخپله دِ بدل کړو په خلعت دَ نیک نامئ
دا طوق دَ غلامئ
که بیا دِ ځان قربان کړه له قرانِ سبحانی
نه کړے نافرمانی
والله چه دِ بدل شی بیا په تاج دَ سلطانئ
دا طوق دَ غلامئ
والله که ته مسلم شوے په رښتیا پخپل صفت
بیا ستا دے لوئے عزت
دشمن ته به ورپاتے شی میراث په ناکامئ
دا طوق دَ غلامئ
الله خوار و ذلیل کړے په حرمت دَ خپل قران
کل واړه مشرکان



دَ دوئ کړدن کښے واچوے عوض دَ شیطانئ
دا طوق دَ غلامئ
محمد امینه جاړے دے دَ خپل اسلام په غم
قرار نه شے یو دم
دشمن له دے خدائے ورکړی په عوض دَ دشمنئ
دا طوق دَ غلامئ

## نعت شریف

په طرف دَ مدینے منورے لاړے
پیسنوړ کښے شومه تنګ بس دے اوړے لاړے
دَ هجران له لاسه تنګ شومه ځما مولا
بنا ګانے دَ هجران خوړے وړے لاړے
دا پسے دَ هجران چغے دی برباد ئے کړمه
یا مولا یوځل دا ناړے سوړے لاړے
دَ هوا هوس سیلاب م کور وران که
یا مولا دغه سیلاب په کنارے لاړے
غریب زړه م دَ هجران له لاسه شو قطرے
یا مولا دغه هجران قطرے قطرے لاړے
خدایه ستا په لوئے کرم او په خوګے نامے
دَ نبی دَ ګلستان تر منجرے لاړے
خدایه بیا باغچه تازه کړے دَ اسلام

د دشمن په خوله ستر کو خاورے اېرے لاړے

خدایه تـه کړے د دے خپل اسلام نشان بالا

د اسلام په هر طرف کښے نغارے لاړے

خدایه تـه د خاتسته رسول الله د دین

شی حامی چه د دشمنانو خولے سپېرے لاړے

خدایه تـه محمد امین سره احسان او کړے

چه ئے زړه په محبت ذرے ذرے لاړے

## نعت شریف

یا نبی سلامٌ علیکم — یا رسول سلامٌ علیکم

یا حبیب سلامٌ علیکم — صلوٰة الله علیکم

چه پیدا دِ سپین بشر شو — جهان واړه منوّر شو

شیطان لاړ خاک په سر شو — صلواة الله علیکم

چه پیدا شوے په کوم دم — په کفارو پریوت غم

بُت خانے شولے درهم — صلواة الله علیکم

مخ دِ شمس او هم قمر دے — لا تر دوئے نه منوّر دے

کل بدن دِ معطّر دے — صلواة الله علیکم

په تورات او په انجیل — ستا صفت کړه رب جلیل

قربان ستا تر مخ جمیل — صلواة الله علیکم

اوس قران کښے دِ صفت دے — اها خومره دِ عزت دے

خدائے دې کړے برکت دے — صلواة الله علیکم

په طٰهٰ او په یٰسٓ — ستائے رب العلمین

ستا زیبا رخسار حسین — صلواة الله علیکم

رحمةً للعالمین ئے — شمع بزمِ مرسلین ئے

مهبط روح الامین ئے — صلواة الله علیکم

په خاطر ستا د رخسار — ورغے ستا تر مزار

زه سره د موی او پلار — صلواة الله علیکم

ستا گدا محمد امین — اے سردار بهترین

قربانی کړے پخپل دین — صلواة الله علیکم

## نعت شریف

حما آقا محمدؐ مصطفیٰ شاه مدینه دے

حبیبِ ذوالمنن بحرِ وفا شاه مدینه دے

حما آقا د مدینے منورے شاهِ والا

سهی سروے نبوت مرتضیٰ شاه مدینه دے

چه ډیر زیبا مزین تاجِ د لولاک کړلو په سر

هغه سیّد هغه سروری حما شاه مدینه دے

چه مثلِ جبریلؑ خادم لری په دی کمر بسته

هغه ډیر گران په رب شاهِ اعلیٰ شاه مدینه دے

چه په نفسی نفسی گویا شی نبیانؑ جمله په محشر

په ربِّ هب لی امتی صدا حما شاهِ مدینه دے

واجب دے مونږ لره جنت که هر څو یو گنهگاران

چه په محشر کښې خونړ پیشوا هغه شاهِ مدینه دے

غله به سوزی د دوزخ په اور عاصی محمد امین

چه ئے زیبا مزین دلربا شاهِ مدینه دے،

---

نن خو عجیبه تماشه ده    شاه کمربند د شفاعت تړ ملا تړینه

## نعت شریف

والله زما آقا رسول الله عربی دے

سردارِ ذوالعلا رسول الله عربی دے

سردار اولیا هم اولین هم آخرین

محبوبِ کبریا رسول الله عربی دے

نفسی نفسی به وائی هغکی واړه نبیانؑ

په اُمتی گویا رسول الله عربی دے

تکیه د بے کسانو د رند و د لاس عصا

د دردو غم دوا رسول الله عربی دے

د خوګ زړګی دوا دے مسیحا ئے مدنی

د هر مرض شفا رسول الله عربی دے

دده په مخ رڼا شوه د کفر توره شپه

د کل جهان رڼا رسول الله عربی دے

ډیر کرم او پُر خطا او مختورن محمد امین

قسم پتا شیدا رسول الله عربی دے

## نعت شریف

د حضرت مُصطفٰی شمس الضحٰی نن شپه کښې محفل دے

د احمد مجتبٰی شمس الضحٰی نن شپه کښې محفل دے

صلوٰة الله صلوٰة الله صلوٰة الله او وائی تهول

د محبوبِ خُدا شمس الضحٰی نن شپه کښې محفل دے

درود په ډیر ادب تعظیم او وائی نن په پاک حضرت

د سردارِ عُلٰی شمس الضحٰی نن شپه کښې محفل دے

ملک د عالمِ بالا چه واوری داد محفل شور

وائی د صلِّ علٰی شمس الضحٰی نن شپه کښې محفل دے

د چاد نورہ چه پیدا دے دا جمله کون و مکان

د هغې مرتضٰی شمس الضحٰی نن شپه کښې محفل دے

چه ئے په سر تاج د لولاک په ډیر عزت ایښے مولا

د هغې مقتدا شمس الضحٰی نن شپه کښې محفل دے

چه عاشقان دی د حضرت نن به راځی په محبت

چه د خیر الورٰی شمس الضحٰی نن شپه کښې محفل دے

په ډیر ادب سره محمد امینه کړه نعت خوانی

چه ستا د دلربا شمس الضحٰی نن شپه کښې محفل دے

## نعت شریف

تجلی پوره ته عرش ته رسیګی ستا

چه صفتِ والضحٰی قرآنی لرے ته

کل خوبان دَ جهان قربانیګی لتا

حبیبي څه رخسار زیبا لرے ته

ځکه ستا یم وجه الجمیل ستا پر نور

ته له ماه و خورشید نه ډیر منور

سنبل مشک ختن ډیر کمیګی لتا

چه ګیسوئ والیل سیّدا لرے ته

رڼا کون و مکان ستا دَ مخ په ضیاء

لاس پنام و لاړ تا ته همه انبیاء

دَ لولاک تاج مزیّن ښکاریګی لتا

چه په سر باندے پروت مصطفٰی لرے ته

کمر بند دَ شفاعت په ورځ دَ محشر

چه په ملاکړی سردار ه دَ جنّ و بشر

ګنهګار همګی به تاویګی لتا

چه په یا اُمتی به صدا لرے ته

دَ محشر تګی واړه چه کړی بیا روان

دَ کوثر په طرف شاهِ هردوجهان

هغه تشنه لبان به مړیګی لتا

چه په غاړه دَ کوثر به جاه لرے ته

ستا په مخ والضحٰی کوم سوال سیّدی

چه م خدائے محروم ستا له دیدن پرے نه دی

دا مقصود پوره معلومیګی لتا



چه شیدا په رُخسار پاک مولٰی لرے ته

ستا فقیر دَ مدینے دے **محمّد امین**

ستا په مخ غوارې تا له رب العٰلمین

دل و جان جګر ئے نزاریګی لتا

چه فقیر دَ مدینے فدائی لرے ته

## نعت شریف

که په ناموس محمّد کوے غیرت مسلمه

ستا به ایمان ښکاره شي نن به شے اوچت مسلمه

که په میدان دَ محبت کښے دَ نبی ګدے قدم

نن به معلوم شي ستا ایمان او محبت مسلمه

که پتاګران وی په رښتیا دَ مدینے مصطفٰی

نن به معلوم شي په میدان کښے ستا همت مسلمه

باغ دَ اسلام وو په سرو وینو دَ اصحابو تازه

ډیر و یاکانو پرے موندلے شهادت مسلمه

ماله ژړا راځی چه حال ستا دَ اسلام وو وینم

چرته کښے لاړه هغه ستا جوش قومیت مسلمه

زړه ځلے مرخه له داسے بے شرمئ له جونده

چه ته جوندے ګرځے توهین شي دَ حضرت مسلمه

پړدے بے خونده جوندون ستا باندے ژړا راځی

چه نه خورے ننګ دَ محمّد په لوئی عزت مسلمه

د خدائے د پاره د دے خپلے نامے اوشرمیکه

دا ذلیل جوند خوندے دے ستا د نوم صفت مسلمه

محمدؐ مینه ته هم کیده دے میدان کښے قدم

ته هم مسلمه و لے وائی هر ساعت مسلمه

## نعت شریف

وجه الجمیل ئے پتا ختمه زیبائی حبیبه

طرف الکحیل ئے د مازاغ به سلائی حبیبه

سردار ئے خیلِ رُسل سیّد والاعربی

مولا بنکاره کړه ستا د پاره خدائی حبیبه

لاس پنامه درته ولاړ واړه نبیان مرسلان

واړه شاهان ستا د دربار که گدائی حبیبه

اسریٰ بعبدهٖ خطاب دِ مبارک شه نبیؐ

تاج د لولاک دِ په سر که خوشنمائی حبیبه

قسم دے ترکه وے یعقوبؑ او زلیخے لیدلے

وه به ترے هیرهٔ د یوسفؑ دلربائی حبیبه

په زړه رنځور کړه ستا هجران محمد آمین یا نبیؐ

ته ئے د خدائے د پاره اوکړه دوائی حبیبه

## مصرعے

کمه ئے دیدن کوئ را دو کړی

د شفاعت شال ئے پسر میدان له ځینه



قسم دے دوه سوده به اوشی

یو شفاعت بل به دیدن د جانان شینه

د محشر تکوړ اپه دوؤ شی

د مدینے سردار کو ترغاړے له ځینه

## نعت شریف

مرحبا روحی فداک یا محمدؐ مصطفیٰ

خدائے د پاره مخ نُما که یا محمدؐ مصطفیٰ

یا محمدؐ مصطفیٰ ئے رحمة للعٰلمین

یو نظر سوئے گدا که یا محمدؐ مصطفیٰ

تاج د لولاک ستا په سر زیبا مزیّن خوند کوی

هاشمی سرداره پا که یا محمدؐ مصطفیٰ

جبرئیلؑ راغے لحق نه درشبِ معراج تو

ستا په درکښے داصدا که یا محمدؐ مصطفیٰ

مسجدِ اقصےٰ کښے صف آراشه بیا مولا له زو

قدسیان کل ستا هوا که یا محمدؐ مصطفیٰ

په مقام د قاب و قوسین تا ترب جلوه خپله

به حقه رښتیا نما که یا محمدؐ مصطفیٰ

ستا گدا محمدؐ امین هر شوکه رخسار تورلری

ستا د دیدن التجا که یا محمدؐ مصطفیٰ

## نعت شریف

اې چه مخ زیبا لرې خائسته بدر منیر څنې
کله خو په لعلو لبو کړه پرسان فقیر څنې
اې چه دِ په والضحٰی ستائلې سپین د رخسا شي
لږ خوئې را څرګند کړه چه م غم ورک شي ضمیر څنې
اې چه په مازاغ دِ مکحل دواړه عینین دي
نرګس و بادام واهو خله کړم تعبیر څنې
اې چه په وَالَّیلِ اِذَا یَغشٰی دِ شان د زلفې کړې
څه زه ئې صفت او کړم له سنبلُ عبیر څنې
تا چه په قبا دَ مزمل کښې ځان سنبال کړو
پاتې څۀ حاجت شولو دیبا او که حریر څنې
خلعتِ طٰهٰ دَ یاسن شال دَ یٰسٓ خوند کوي
څومره خوند که دومره چه بیروت دَ تقریر څنې
ورځ چه دَ محشر شي بالا شوي شي په عالمو کښې
یو نعت خو وا وره له **محمد امین** دلګیر څنې

## نعت شریف

دَ مدینې هغه رونق په زړه وریګي ځما
تن م دلې زړه م روضې منورې څخه دې
دَ مدینې هغه رونق چه په زړه یادګم زه
لکه بلبل په هغه ګل پسې فریاد کړم زه



هغه بهار هغه ګلزار کله هیریګي ځما
دَ مدینې هغه رونق په زړه وریګي ځما
دَ زړه طوطي م فریادي هغه پنجرې څخه دې
تن م دلې زړه م روضې منورې څخه دې
چا په رورو وئیل څوند خیر البشر نبيؐ
چا به په زوره وې چه اې رسول الله عربيؐ
لکه یتیم دَ زړه سلګئي کله اوریګي ځما
دَ مدینې هغه رونق په زړه وریګي ځما
روح ځما پاتې دَ حضرت نبي دیرې سره دې
تن م دلې زړه م روضې منورې څخه دې
ته ئې رسول درب مقبول فضل نزول شو په مونږ
شکر الله شکر الله شیطان ملول شو په مونږ
اوس په روضې دَ زړه عجب بودا پریګي ځما
دَ مدینې هغه رونق په زړه وریګي ځما
تن م په فرش زړه م دَ عرش دَ منارې څخه دې
تن م دلې زړه م روضې منورې څخه دې
ارمان ارمان هغه زمان به کله راشي پېما
په ځنکدن کښې په وحدت ژبه ګویا شي ځما
زړه مسافر دَ قافلې په اوخ سوریګي ځما
دَ مدینې هغه رونق په زړه وریګي ځما
په غوږ و زوک م دَ طواف هغه میرې څخه دې

د مدينے هغه رونق په زړه وړ يکی ځما
وايم صلوٰة په هغه ذات چه دے رحمت د الله
هم اولين هم آخرين دے په قدرت د الله
د نفس د لاسه گناهونه صادر يکی ځما
د مدينے هغه رونق په زړه وړ يکی ځما
عمر م واړه د ابليس د خطرے ځنه دے
تن م دلے زړه م روضے منورے ځنه دے
هغه غلاف هغه طواف هغه اوصاف د کلام
کله هير يکی م درود په الصلوٰة والسلام
د ستر گو اوخی گرے هر ساعت وريکی ځما
د مدينے هغه رونق په زړه وريکی ځما
فکر ځما د کربلا دشتِ ميرے ځنه دے
تن م دلے زړه روضے منورے ځنه دے
په دے ميدان کښے داسے شپے ورځے تيريکی ځما
د مدينے هغه رونق په زړه وړ يکی ځما
شکر په دا چه خيال ځما هغه پنجرے ځنه دے
تن م دلے زړه م روضے منورے ځنه دے
بس که دوات قلم که مات نه شو ابيات تمام
بهتره دا چه په رسولؐ وايه صلوٰة وسلام
رسول الله به د زړ کی بحال خبريکی ځما
د مدينے هغه رونق په زړه وريکی ځما



غلام قادر چه سيزی اُور فرياد تا ځنه دے
تن م دلے زړه م روضے منورے ځنه دے

## نعت شريف

په ميدان کښے د محشر محمدؐ راغے
د لولاک تاج ئے په سر محمدؐ راغے
ملائک ترے وړاندِ روستو ځی عالمه
شهنشاه د بحروبر محمدؐ راغے
ځی او گس ته ئے جبرائيلؑ او ميکائيلؑ
وړاندے روستو ترے لښکر محمدؐ راغے
کمربند د شفاعت تر ملا تړلے
په هزار شکوه وفر محمدؐ راغے
په خلعت کښے د طٰهٰ ئے ځان سنبال که
مزمل قبا دربر محمدؐ راغے
په مازاغ ئے مکحل عينين د ناز
والضحیٰ مخ جلوگر محمدؐ راغے
د والليل زلفے خورے په اوگو باندے
خلقه هسے ناز پروړ محمد راغے
د يٰس د شال ئے څه او کړم تعريف
خو والله خير البشر محمدؐ راغے
د هجران په تيغ زخمی زړونه به جوړ شی

هغه ډیر زیبا دلبر محمدؐ راغې

مبارک موشه بیا بیا گنهګارانو

شفاعت له نامور محمدؐ راغې

را پاسیګئ د محشر تګو تلوار کړئ

زی قسمت له د کوثر محمدؐ راغې

څنې څنې به جړیګي چه محشر دے

په **محمد امین** اختر محمدؐ راغې

## نعت شریف

محمدؐ خیر البشر د جهان روح

اے محبوبه د اکبر د جهان روح

ترخو کے ناسے دِ زار شم هزار ځله

اے قریب د خدائے په درد جهان روح

د مولا د نور نه ستا نور پیدا شوے

اے د دوؤ کونو سرور د جهان روح

ستا د نوره نه پیدا لوح و قلم دے

ته د کل عالم مصدر د جهان روح

په کوم دم چه د آدم ستر کے بینا شوے

ستا په نوم شو نظر د جهان روح

د رب نوم سره دے ستا نوم یو ځائے ولید

پاس په عرش بریں بر د جهان روح



ستا له مخه جنتونه شو روخانه

هم دا شمس هم قمر د جهان روح

چه بسکاره دِ په جهان شغله د مخ شوه

کل جهان شو جلو کر د جهان روح

په ما نړئ کښے د کسرئ تزلزل پریوت

شول بتان زیر و زبر د جهان روح

لا اِلٰه اِلّا الله نعرے شوے پورته

شوے تسلیم حق پیغمبر د جهان روح

د مولا دانی له ستا لا مکانه لارے

له ششدره نه شوے بهر د جهان روح

ملائک دِ وړاندے روستو تله خدمت کښے

په هزار شکوه فر د جهان روح

د والیل زلفے خورے په اوګو پرید ه

مزمل قبا دربر د جهان روح

امتی نعرے به کړی په هزار ناز

په میدان د لوئے محشر د جهان روح

په دیدن چه دِ سیراب شی مشتاقان

شی محشر به پرے اختر د جهان روح

ته چه کدے قدم د ناز هغه میدان کښے

غوره وم به زره بصر د جهان روح

ستا به مخ له ربه دغه دولت غواړم

هغه ډیر زیبا دلبر محمدؐ راغی
مبارک موشه بیا بیا ګنهګارانو
شفاعت له نامور محمدؐ راغی
راپاسیګئ د محشر تګو تلواړ کړئ
زی قسمت له د کوثر محمدؐ راغی
ځنې ځنې به جړیګی چه محشر دے
په **محمد امین** اختر محمدؐ راغی

## نعت شریف

محمدؐ خیر البشر د جهان روح
اے محبوبه د اکبر د جهان روح
ترخوګے ناسے ډزاړ شم هزار ځله
اے قریب د خدائے په درد جهان روح
د مولا د نور نه ستا نور پیدا شوے
اے د دوؤ کونو سرور د جهان روح
ستا د نوره نه پیدا لوح و قلم دے
ته د کل عالم مصدر د جهان روح
په کوم دم چه د آدم ستر ګے بینا شوے
ستا په نوم شو نظر د جهان روح
د رب نوم سره ئے ستا نوم یو ځائے وُلید
پاس په عرش برین بر د جهان روح



ستا له مخه جنتونه شو روخانه
هم د اشمس هم قمر د جهان روح
چه ښکاره ډِ په جهان شُغله د مخ شوه
کل جهان شو جلوګر د جهان روح
په مانړئ کښے د کسرئ تزلزل پریوت
شول بتان زیر و زبر د جهان روح
لَآ اِلٰهَ اِلَّا الله نعرے شوے پورته
شوے تسلیم حق پیغمبر د جهان روح
د مولا دانی له تره لا مکانه لاړے
له ششدره نه شوے بهر د جهان روح
ملائک دِ وړاندے روستو تله خدمت کښے
په هزاړ شکوه فر د جهان روح
د والیل زلفے خورے په اوګو پرید هِ
مزمّل قبا دربر د جهان روح
اُمّتی نعرے به کړی په هزار ناز
په میدان د لوئے محشر د جهان روح
به دیدن چه دِ سیراب شی مشتاقان
شی محشر به پرے اختر د جهان روح
ترچه ګدے قدم د ناز هغه میدان کښے
غوړه وم به زه بصر د جهان روح
ستا په مخ له ربه دغه دولت غواړم

زه **محمد امین** کمتر دَ جهان روح

## نعت شریف

اے پہ دړ دَ ړب روټداره الغیاث
محمدؐ خیر الابراړه الغیاث

قریشي او هاشمي اعلیٰ نسب
مرسلانو کښې مختاړه الغیاث

اے چه ئُ شمس الضحیٰ بدر الدجیٰ هُم
همکي وجود انواړه الغیاث

اے چه تاج دَ لولاک ستا په سر جلوه کړ
دَ مولا دَ لوئې درباره الغیاث

اے دَ لِي مَعَ اللہ تخت باندے سلطانه
دواړو کونو کښې نامداره الغیاث

دَ عزت نشان چه ستا له عرشه بر دے
اے صدر العلیٰ سرداره الغیاث

دَ قُربت په مسند لامکان کښې ناسته
اے دَ پاک اللہ ښکاړه الغیاث

جبرائیل غونړِ نامدار دِ خدمتګار دے
اے دَ ډیر شرف تاجداره الغیاث

په فلک دَ نبوّت بدرِ منیره
دې قربان شمه ډیر واړهٔ الغیاث



اے مشعله دَ محفل دَ مرسلانو
عزّت مند عالي وقاره الغیاث

اے دَ حُسن دَ خوبئُ بلاغت کانه
والضحیٰ ښیبا رخساره الغیاث

په مازاغ دے مکحّل عینین دَ ناز
عجیبه پُړ له اشاړه الغیاث

معنبر ګیسو وَالَّیۡلِ اِذَا یَغۡشٰی ستا
دَ خُتن نافے بیشماړه الغیاث

دَ نیاز کچکول پلاس ولاړیم تاته
راکړه خیر دَ دے دړباره الغیاث

زه **محمد امین** خو ستا دَ درخاکروب یم
په ادب وایم خُداړا الغیاث



اللهم صل وسلم و بارک علیٰ سیدنا ومولانا محمّد وآلہٖ و عترتہٖ بعدد کل معلوم لک. واعطه الوسیلة والفضیلة والدرجة الرفیعة وابعثه مقامًا محمودن الذی وعدتهٗ وارزقنا شفاعتهٗ انک لاتخلف المیعادط
برحمتک یا ارحم الراحمینط



دا خطبه به حاجي صاحب مرحوم پخپله به ډېر شوق لوستله

بسم الله الرحمٰن الرحيم

# خطبه جُمعة المبارك

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ط اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ كَمَا هُوَ اَهْلُهٗ
وَيُحِبُّ وَيَرْضٰى وَكَمَا يَنْبَغِيْ لِجَلَالِ
وَجْهِكَ الْكَرِيْمِ الْمُجِيْبِ الَّذِيْ هَدٰنَا
لِهٰذَا وَمَا كُنَّا لِنَهْتَدِيَ لَوْلَا اَنْ هَدٰنَا
اللّٰهُ ج لَقَدْ جَآءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا بِالْحَقِّ ط
سُبْحَانَ الَّذِيْ تَقَدَّسَتْ عَنِ الْاِشْتِبَاهِ
ذَاتُهٗ . وَتَنَزَّهَتْ عَنْ مُّشَابَهَةِ الْاَمْثَالِ
صِفَاتُهٗ . وَشَهِدَتْ عَلٰى رُبُوْبِيَّتِهٖ اٰيَاتُهٗ .



وَاحِدٌ لَا مِنْ قِلَّةٍ وَّ مَوْجُوْدٌ لَا مِنْ عِلَّةٍ
يَا مَنْ هُوَ بِالْبِرِّ مَعْرُوْفٌ وَّبِالْاِحْسَانِ
مَوْصُوْفٌ ط اَوَّلٌ قَدِيْمٌ بِلَا اِبْتِدَآءٍ
وَّاٰخِرٌ كَرِيْمٌ بِلَا اِنْتِهَآءٍ . سُبْحَانَ اللّٰهِ
وَبِحَمْدِهٖ سُبْحَانَ اللّٰهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيْمِ ط
سُبْحَانَ الْاَبَدِيِّ الْاَبَدُ . سُبْحَانَ الْوَاحِدِ
الْاَحَدُ . سُبْحَانَ الْفَرْدِ الصَّمَدُ . سُبْحَانَ رَافِعِ
السَّمَآءِ بِغَيْرِ عَمَدٍ . سُبْحَانَ مَنْ بَسَطَ الْاَرْضَ
عَلٰى مَآءٍ فَجَمَدَ . سُبْحَانَ مَنْ قَسَمَ الرِّزْقَ
وَلَمْ يَنْسَ اَحَدْ . سُبْحَانَ الَّذِيْ لَمْ يَتَّخِذْ
صَاحِبَةً وَّلَا وَلَدْ . سُبْحَانَ الَّذِيْ لَمْ يَلِدْ

وَلَمْ يُوْلَدْ وَلَمْ يَكُنْ لَّهٗ كُفُوًا اَحَدٌ ۝

اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا

شَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ كَمَا

هُوَ اَهْلُهٗ وَيُحِبُّ وَيَرْضٰى وَاَشْهَدُ اَنَّ

سَيِّدَنَا وَحَبِيْبَنَا وَكَرِيْمَنَا مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ

وَرَسُوْلُهٗ ؕ اَرْسَلَهٗ بِالْحَقِّ بَشِيْرًا وَّنَذِيْرًا ؕ

بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ ؕ مَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ

فَقَدْ رَشَدَ وَمَنْ يَّعْصِهِمَا فَلَنْ يَّضُرَّ اللّٰهَ

شَيْئًا ؕ وَلَا يَضُرُّ اِلَّا نَفْسَهٗ ؕ

بَارَكَ اللّٰهُ لَنَا وَلَكُمْ فِي الْقُرْاٰنِ

الْعَظِيْمِ ؕ وَنَفَعَنَا وَاِيَّاكُمْ بِالْاٰيٰتِ



وَالذِّكْرِ الْحَكِيْمِ ۝ اِنَّهٗ تَعَالٰى جَوَادٌ كَرِيْمٌ

مَلِكٌ بَرٌّ وَّرَبٌّ رَّءُوْفٌ الرَّحِيْمُ ۝

دریں جا جلسہ کردہ باز استادہ بخواند

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ زَيَّنَ النَّبِيِّيْنَ

بِحَبِيْبِهِ الْمُصْطَفٰى وَمَنَّ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ

بِنَبِيِّهِ الْمُجْتَبٰى وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى

حَبِيْبِهٖ وَنَبِيِّهٖ مُحَمَّدِنِ الْمُصْطَفٰى اَشْهَدُ

اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا

عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ ؕ اَللّٰهُمَّ انْصُرْ مَنْ نَّصَرَ

دِيْنَ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاجْعَلْنَا

مِنْهُمْ . وَاخْذُلْ مَنْ خَذَلَ دِيْنَ حَبِيْبِيْ

مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا تَجْعَلْنَا مِنْهُمْ

اَللّٰهُمَّ اَيِّدِ الْاِسْلَامَ وَالْمُسْلِمِيْنَ بِبَقَآءِ

شَرِيْعَةِ مُحَمَّدِ نِ الْمُصْطَفٰى ﷺ - اَللّٰهُمَّ اِنَّا

نَسْئَلُكَ بِحُرْمَةِ سَيِّدِنَا وَمَوْلَانَا مُحَمَّدٍ ﷺ

وَفَقْرِهٖ ط وَبِحُرْمَةِ صِدْقِ اَبِىْ بَكْرٍ ؓ وَّفَتَائِهٖ ط

وَبِحُرْمَةِ خِلَافَةِ عُمَرَ ؓ وَ قَضَائِهٖ ط

وَبِحُرْمَةِ سَخَاوَةِ عُثْمَانَ ؓ وَصَفَائِهٖ وَبِحُرْمَةِ

شُجَاعَةِ عَلِيٍّ ؓ وَعِلْمِهٖ ط وَبِحُرْمَةِ عِبَادَةِ الْحَسَنِ ؓ

وَغُرْبَتِهٖ ط وَبِحُرْمَةِ شَهَادَةِ الْحُسَيْنِ ؓ وَحِلْمِهٖ ط

وَبِحُرْمَةِ اُمِّهِمَا فَاطِمَةَ الزَّهْرَآءِ ؓ سَيِّدَةِ نِسَآءِ

اَهْلِ الْجَنَّةِ ط وَبِحُرْمَةِ عَمَّيْهِ الشَّرِيْفَيْنِ الْحَمْزَةِ ؓ



وَالْعَبَّاسِ ؓ ، وَبِحُرْمَةِ عَشَرَةِ الْمُبَشَّرِيْنَ وَسَائِرِ

الصَّحَابَةِ ؓ وَالتَّابِعِيْنَ ط

اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْئَلُكَ اَنْ تُعْطِيَنَا كَمَالَ

مَحَبَّةِ خُلُوْصِ ذَاتِكَ وَكَمَالَ شَوْقِ سِرِّنَا

اِلٰى لِقَآئِكَ ۔ اَللّٰهُمَّ يَا اَهْلَ الْكِبْرِيَآءِ وَالْعَظَمَةِ

وَيَا اَهْلَ الْعَوْنِ وَالْقُدْرَةِ وَيَا مَالِكَ الدِّيْنِ

وَالْاٰخِرَةِ سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَ

اِلَيْكَ الْمَصِيْرُ ط

تَعَادَلُوْا عِبَادَ اللّٰهِ ط اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُ بِالْعَدْلِ

وَالْاِحْسَانِ وَاِيْتَآءِ ذِى الْقُرْبٰى وَيَنْهٰى عَنِ

الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ وَالْبَغْيِ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ط

اُذْكُرُوا اللهَ يَذْكُرْكُمْ وَادْعُوهُ يَسْتَجِبْ لَكُمْ وَلَذِكْرُ اللهِ تَعَالَى اَعْلَى وَاَوْلَى وَاَعَزُّ وَاَجَلُّ وَاَتَمُّ وَاَهَمُّ وَاَكْبَرُ ۝ وَاللهُ يَعْلَمُ مَا تَصْنَعُونَ ۝



بسم الله الرحمن الرحيم

كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ وَّيَبْقٰى وَجْهُ رَبِّكَ ذُو الْجَلَالِ وَالْاِكْرَامِ ۝

# ترانهٔ نصیحت

نور غافل مه ګرزه لرے مشکل سفر په مخکښ
جوندے به نه ئے همیشه آخر به مړ شے روره
ستا پشان ډیر خاورو کړه کیونام ونشانِ ورک شو
زامن او ښځے جنګلی سازوسامان ئے ورک شو
اوس ئے څوک نوم نه یاده وی دیو بشر په مخکښ
نور غافل مه ګرزه لرے مشکل سفر په مخکښ



کور به دے پاتے شی، د ګوز په لور به ورشے روره
جوندے به نه ئے همیشه آخر به مړ شے روره



تر څو به سپین ګرزے دا سپینه به دے پاتے به شی
لا سونه شل سترګے ړندے دواړه خپے ماتے به شی
مُدام به نه ګرزی دا خوله شونډے بصری به مخکښ
نور غافل مه ګرزه لرے مشکل سفر په مخکښ
ستا سپین بدن به د اجل په خاورو خړ شی روره
جوندے به نه ئے همیشه آخر به مړ شے روره



ګوریان کښے او ګوره دا څومره عالمونه لاړه
هسے شان خاورے شو چه بالکل ئے نومونه لاړه
نن هغه خاورے دی چه تلو به ئے لښکر په مخکښ
نور غافل مه ګرزه لرے مشکل سفر په مخکښ
مرګ به دِ ښکته کړی که هر څومره ډیر لوړ شے روره
جوندے به نه ئے همیشه آخر به مړ شے روره



د مرګ خبره د هر چا مخ له ورځی یو ځلے
نورے جامے د ګناه زر کړه په توبے وینځلے
چه پس له مرګه شے سرخرو د رب اکبر په مخکښ
نور غافل مه ګرزه لرے مشکل سفر په مخکښ

نسکور پریوتے به ضرور په داخپړ شے دوره
جوندے به نه ئے همیشه آخو به مړ شے دوره



دُنیا ناکاره ده غداره وفاداره نه ده
تراوسه هیچا خپله نه کړه دَ هیچا یاره نه ده
تیر کړه احوال دَ شاه جهان او سکندر به مخکښ
نور غافل مه کرزه لوے مشکل سفر په مخکښ
دانا به نه ئے که آلوده به داچکړ شوے دوره
جوندے به نه ئے همیشه آخو به مړ شے دوره



ننګ و ناموس دِ دَ دُنیا دَ مرګه تیر پاتے شه
نازو نعمت دِ همګی زهرو ګنهیر پاتے شه
چه شرمنده شے دَ ډیر سنګلی پیغمبر په مخکښ
نور غافل مه ګرزه لوے مشکل سفر په مخکښ
افسوس حسرت چه دَ حضرت په مخکښ پړ شے دوره
جوندے به نه ئے همیشه آخو به مړ شے دوره



محمد امینه اصیلان په اشارت پوهیږی
ناموس دَ دین اسلام ساتی په شرافت پوهیږی
پند نااهلانو ته ګلونه دی دَ خر په مخکښ
نور غافل مه ګرزه لوے مشکل سفر په مخکښ



جوندے به نه ئے همیشه آخو به مړ شے دوره
(از اسرار مدینه منوره)



ضروری به یو ورځ مرے آخر فنا ده
نن کوه که څه کوے آخر فنا ده
داچه تر په ګرزے ګدے په قدمونه
دغه واړه دی زیبا زیبا مخونه
خاورے شوی دی چه تا نه وړاندے وُونه
ته به هم ورپسے زے آخر فنا ده
ضروری به یو ورځ مرے آخر فنا ده
نن کوه که څه کوے آخر فنا ده

---

که حاصل دِ ډیر دولت کړو په دے څه
که دِ لوړ محل او چت کړو په دے څه
که دِ کل جهان لت پت کړو په دے څه
یوه ورځ به خاورے شے آخر فنا ده
ضروری به یو ورځ مرے آخر فنا ده
نن کوه که څه کوے آخر فنا ده

---

ستا په شان خاورو کښے ډیر ځوانان وراسته شو

تخت و تاج چہ ئے لرل شاهان ورا ستہ شو
د رستم په شان پهلوانان ورا ستہ شو
مست په کومه نشه ئے آخر فنا ده
ضروری به یو ورځ مرے آخر فنا ده
نن کوه که څه کوے آخر فناده

---

پیدا شوے بندګئ له ئے هوشیار شه
په ګناه ځان ګنده نه کړے خبردار شه
لوئے سفر لرے په مخکښے ویخ تیار شه
پاتے نه دی ډیرے شپے آخر فناده
ضروری به یو ورځ مرے آخر فناده
نن کوه که څه کوے آخر فنا ده

---

یوه ورځ به بندیوان د اجل شے
مسافر به د عقبیٰ د منزل شے
د قبرونو د یارانو به مل شے
په دُنیا به ډیر نه ئے آخر فناده
ضروری به یو ورځ مرے آخر فناده
نن کوه که څه کوے آخر فناده

---

راشه او باسه توبه تابع د رب شه



تابعدار او وفادار په روځ و شب شه
د محمد مصطفیٰ په خوئے ادب شه
که څه هوش فکر لرے آخر فناده
ضروری به یو ورځ مرے آخر فناده
نن کوه که څه کوے آخر فنا ده

---

د فقیر نادار شرعی ځوان ترسپلئے
شه قربان د سلطنت ګل خوشحالئے
ورک شه ورک شه تخت و تاج د نااهلئے
بدعمل بدکار نه شے آخر فنا ده
ضروری به یو ورځ مرے آخر فناده
نن کوه که څه کوے آخر فنا ده

---

محمد امین فقیر سره به جاری
چه مین څوک پخپل رب وی او د رب غواړی
جاهلان به په بدنیت روستو ولاړ وی
چه نژدے دوئے ته نه شے آخر فناده
ضروری به یو ورځ مرے آخر فناده
نن کوه که څه کوے آخر فنا ده

---

(زدا نظم د کتاب (من الرب الرحیم) غیر مطبوعه قلمی اصل ص۱۱ نه اولیکلے شو)

# عرض کاتب

حَامِداً و مُصلِّیاً وَ مُبسلاً - دوستانوته دِ معلومه وی چه دا کتاب گلدستهٔ مدینه منوره څلور واړه حصے نن نه تقریباً پنځه پنځوس کاله مخکښے عبد السلام صاحب مرحوم کتب فروش دَ قصه خوانی پښاور چاپ کړے وو. دَ هغے نه پس ما بنده یو ځل هم په دے ورکوټے طریقه دا دواړه حصے جناب فقیر محمد صاحب مرحوم نورانی کتب خانے پښاور ته لیکلے وو. لیکن هغوئی نه هغه وخت سره کتابت ضائع شو او چاپ کیدونه پاتے شو.

داکتاب آخر کښے بالکل نایاب شو. صِرف یوه نسخه جناب هاشم خان صاحب دَ سلیما نخیلو سره موجوده وه او دے هم په دے زیات باعث وو چه کتاب دوباره چاپ شی. کتابت اوشو لیکن کتاب کښے دوه پا نړے شلید لے وے. دَ هغے دَ مکمل کیدو دَ پاره بل اصل نهٔ ملاویدو- په دے وجه ډیرو مختلفو لرو علاقو ته تلل راتلل اوشو. بالاخر قبائلی علاقه مچنئ سره دَ یو مهاجر او ډیر مُحِب دوست جناب غلام رسول صاحب دَالله سره دویمه نسخه ډیره ضعیفه حالت کښے اوموندے شوه څه دَ دے نه اوڅه دَ جناب نعتخوان مُراد علی صاحب دَ عُمری و په شکریه سره کتاب مکمل شو

دَ دے کتاب اکثره نسخے افغانستان کښے دَ روس دَ تسلّط نه مخکښے موندے شوے دَ دے دویمه او څلورمه حصه هم کافی لوئے کتاب دے. دَ دے دواړو حصو دَ نه وچند هُم زیات دے. ما دَ افغانستان نه اخیری دواړه حصے امانتاً خواصو نه دَ چاپ کولو دَ پاره راوړے وے. لیکن دلته خپل ځائے کښے ما نه چا داسے پته کړے چه تراوسه ئے هیڅ معلومات اونه شو.

اوس داکتاب جناب رحمٰن گل صاحب په ډیر شوق چاپ کړو- الله تعالیٰ دِ دَ مذکورټولو سره ډیره کامیابی نصیب کړی. آمین - رضوان الله کاتب کتاب هذا

٢٨٠٩٠٨٧

---

الحمد لله که درین زمان کتاب فرخنده عنوان

# گلدسته مدینه منوَّره

## دویمه حِصّه

دَ پیغمبر صلی الله علیه وسلم مُعجزات

تصنیف

خادم اسلام حاجی محمّد امین عفی عنه حاجی اباد لانگرکزائی)

ډاکخانه عُمرزئی - چارسده - پښاور

- ناشران -

نورانی کتب خانه، بازار عمرزئی

تحصیل و ضلع چارسده



اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ○ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ○ مٰلِكِ یَوْمِ الدِّیْنِ ○ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰی سَیِّدِ الْمُرْسَلِیْنَ ○ وَعَلٰی اٰلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ اَجْمَعِیْنَ ○

# معجزۂ نبی

صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ

په نامه دَ هغه خدائے رب دا بیان دے
چه رحیم دے هم کریم دے هم سبحان دے
له عدم نه ئے علم په یو کُن ساز کړه
خپل حبیب ئے دَ نبیانو سرفراز کړه
دَ لولاک مبارک تاج ئے ور په سر کړه
جبرائیل غونډے ولاړ دَ ده په دَر کړه
ناموړ ئے په طٰهٰ او په یٰسٓ کړه
په والله چه ئے سردارے مرسلین کړه



مقرّب ملائکان ئے خدمتگار دی
آسمانونه ئے له عشقه ناقرار دی
خدائے په خپله په درود او سلام ستائی
ملائک پرے هم صلوٰة و سلام وائی
ته چه یو ځلے درود په ده او وائی
لس رحمته پرے انعام مومی له خدائی
لس نیکئ عمل نامه ستا کښے لیکل شی
لس بدئ چه دے وی کړی ترے وینځل شی
راشه اووایه له شوقه پرے درودؐ
چه په پاک مدینه کښے شی خوشنود
پس له حمده بے عدده دَ معبود
په حضرت په اهلِ بیتوئے درود
راشه واوره مسلمانه دا بیان
چه قوی په آوریدو دِ شی ایمان
معجزه دَ مصطفیٰ نبی سرور ده
مجربه دوائی دَ خوګ جګر ده
یو دشمن وو دَ نبی اٰخرزمان
یهودی چه نازیده پرے یهودیان

ے اللهم صلّ علیٰ محمّد و اٰله و عترته بعدد کل معلوم لک واعطه الوسیلة والفضیله والدرجة الرفیعة وابعثه مقاماً محمود الذی وعدته وارزقنا شفاعته انک لاتخلف المیعاد ط

په سینه کښې ئې کینه دَ مصطفیٰ ص وه
آئینه ئې سراسره ناصفا وه
دَ حضرت دَ دشمنئ نه پاک خداوند
دَده سترګو باندې راوستو ګزند
ده دَ خپلو سترګو ډېره دوائي کړه
ولې لرې ترې مولا هم بینائي کړه
حکیمانِ په علاج باندې ستومان شو
بې علاجه ئې ړانده دواړه چشمان شو
حکیمانو ورله ورکړلو جواب،
پاتې ړوند شولو دشمن دَ پاک جناب
پروت په کور کښې نا علاج په سترګو ړوند
په زړه سترګو باندې پروت دَ کفر دوند
یوه لور دَ دې یهود وه نازنینه
خایسته او باکماله ماه جبینه
پاکدامنه پرهیزناکه باحیا وه
دَ حضرت ص په محبت کښې مُبتلا وه
پاک حضرت ص باندې راوړې وه ایمان
یهودي ترې خبر نه وو په هیڅ شان
یوه ورځ ئې پلار ته وکړه دا ګفتار
په ادب او په تعظیم او په قرار
بابا جانه ستا خدمت کښې ځما سوال دې



ستا په سترګو ړندید ورم زړه ملال دې
ما لیدلې یو طبیب دې عالي جاه
دخوارانو بې کسانو پشت پناه،
طبیب څه چه مسیحا دَ زمانې دې
پاک له عیبه له تکبّر او له بهانې دې
چه هر چا له ره دارو ورکړي روغیږي
په دارو دَ ړندو سترګو خه پوهیږي
ته که وکړې اجازت نو ورې بشم زه
ستا دَ سترګو دوائي به ترې راوړم زه
پلار ورې اووې حکیمان م ډیر کتلي
چه به نه وي په جهان کښې ترینه ښکلي
ولې نه جوړیږي سترګې چه ړندې شي
ځما لورې خو که ستا یقین په دې شي
ولې ته چه اجازت غواړې نو ورشه
دا دارو راوړه چه وا چومه زر شه
لورې لاړله بهر په زړه شادانه
په تعظیم او په ثنا دَ رب ګویانه
شوه حاضره په خدمت دَ پاک حضرت
وه مشغوله دَ مولا په عبادت
دَ حضرت ص نه قرباني شوه خوشحال واره
بیائې راوړه دَ حضرت دَ قدم خاوره

پلار ته ئې وه نیوه چه دا دے دوائي ده
که مولا که ستا ستاد دَ سترګو دوائي ده

چه یهود سترګو کښې واچولے خاورې
یخې سترګې شوې فی الحال لکه دَ واورې
تمامي جهان ئې ولیده فی الحاله
یهودي شولو حیران له دې کماله
چه دا څرنګه دارو څرنګ طبیب دے
دا طبیب خو په جهان کښې ډیر عجیب دے
چه ړندې سترګې ځما بینا شوې دواړه
دے طبیب له به ورځم پورې په غاړه
لوړے څوک دے دا طبیب چه ئې نوکر شم
په خدمت کښې ئې حاضر په سترګو سر شم
لوړے ووے دَ طبیب مکړه پُرسان
دَ طبیب که درته وکړمه بیان
دَ بیان په آورېدو به ئې زهیر شې
خه پوهیږمه زخمي به په ضمیر شې
یهودي ویلي لوړے دا خه وائې
دا عبث آر بیهوده ولے لګیا ئې
زر شه او خایه طبیب ځما پکار دے
چه ئې کړے ما سره احسان بسیار دے
لوړے اووے خه ده واوره دا بیان



دا طبیب دے محمد ﷺ آخر زمان
چه ئې تاج دَ لولاک ایښے خدائے په سر دے
په ټولي دَ انبیاؤ کښې افسر دے
دا دارو دی دَ هغه دَ قدم خاورے
بابا جانه که ځما خبرے آورې
یهودي چه په دے حال شو خبردار
دَ غُصے نه شولو تاؤ لکه دَ مار
په غضب او په کینه شولو یهود
دَ کینې په اُور سستي هغه مردود
ویلے لوړے دا دے څومره اوکړه بد
چه دے نۀ وینم دَ دغه بد وحد
ته ځما دَ زړه قطرے وے ځما لوړے
شي پتا باندے دے پسے دَ غم توړے
له ځامنو ځنے وُم پتا مېن
ولے بد وکړه لما سره تا نن
دَ دشمن دَ قدم خاوړے دِ نن ولے
ځما سترګو کښې دے لوړے واچولے
دے دغه سړے څومره دَ دین دُشمن
یُو دَ ده دَ لاسه تل په زړه غمجن
نوے دین ئې جاري کړے دے هر خواته
ځکه دین دَ یهودیانو شولو شاته

زہ قسم خوړمہ پہ نوم دَ پاک سبحان
چہ ړاندہ بہ کړم پہ بیرتہ خپل چشمان

پکښې خاورې دَ دشمن دَ خپو پرې نہ دم
تہ بہ اوګورې چاړہ چہ پرې کینہ ګدم

زړ شہ راوړہ چاړہ ستر ګے را اوباسم
تہ ئې راوړې کہ زہ پخپلہ پسې پاسم

یهودی چاړہ تہ لاس کړہ پہ تلوار
او پہ خپلو سترګو ئې اوکړلو ګذار

دواړہ سترګے بیا زخمی هغہ کافر کړے
پہ غصے او پہ کینې ظالم پرهر کړے

چہ دَ سترګو ئې ګړلہ چاړہ پوړ تہ
بیائې اولګیدہ نظر هر یو لوړ تہ

دہ ګذار پہ دوبارہ وکړلو سخت
دغہ سترګے ړندولے دے کم بخت

چہ ئې بیا کړلہ چاړہ لہ سترګو لرے
بیائې سترګے شوے روخانہ ملغلرے

پہ غصہ ئې چاړہ بیا کړلہ پرے بنخہ
چہ دَ دغہ سترګو نہ پریدمہ نخہ

خو چہ بیائې کړہ چاړہ ترینہ بهر
خدائې هر طرف تہ اولګوُ نظر

پہ اُرہ کړتہ ئې اوکړلو دا کار،



ځو مرہ ډک وو لہ کینې دغہ مُردار
ناګهانہ دَ هاتف څخہ آواز

شو دَ دغہ یهودی پہ غوږو ساز
چہ بہ هیچرے ړاندہ دغہ چشمان

نکړے وای اے یهودہ پہ خہ شان
کہ آویا کرتہ ئې دا سترګے اوباسے

خدائې بہ ئې بیا دی لہ بینا کړے واورہ داسے
دی پہ دے کښې دَ خپو خاورے دَ حضرتؐ

اے یهودہ نہ لرے دغہ طاقت
دَ مولا دَ دوست دَ خپو خاورے دی دوی کښې

هیچرے بہ ئې ړاندہ نکړے بد خوئ کښې
یهودی ډیر شرمندہ او شرمسار شو

هغہ لوی تہ بیا ګویا پہ دا ګفتار شو
چہ اے لورے زہ لہ خپل دین نہ ویزاریم

قربانی لہ محمد صلی اللہ علیہ وسلم نہ پہ څو واریم
زړ شہ ما دَ محمدؐ تر درہ بیایہ

روانیګہ پہ تلوارے لہ دے ځایہ
کلیمہ دَ محمدؐ عربی وایم،

چہ جوندے یم پہ ثنا صفت بہ ئې ستایم
پلار تہ ووے هسے شان هغہ لورے

لورے څہ وہ بلکے هغې پہ پاکے حورے

چہ ستا تله نه دی په هسې شان پکار
په طرف دَ هغه ناموړ سردار
تا له حد زیاتی بدکړیدی پلار ره
درته چل دَ ورتلو زه ښایمه واوره
چه به واچومه پړې ستا پغاړه
هم به اوترمه ستا لاسونه دواړه
هم په خپو کښې به زنځیر واچوم تا ته
ښواتې به ورزو پاک مصطفیٰ ته
پلارے اووے هر چه وے لورے منم زه
طوق پغاړه پاک حضرت لره ورځم زه
چه روان په دغه شان شو لور او پلار
جبرائیلؑ راوه لیګلو پاک غفار
پاک حضرتؐ ته په دے حال کړو خبردار
چه دشمن دِ شولو دوست راځی پلار
یهودی چه پاک حضرتؐ ته روبرو شو
په ژړا په عاجزئ او په زاړو شو
قدمونه ئے کړل خکل په ښوخو واړه
زاریدو دَ مدینے له پاک سرداره
پاک حضرت هم ورته حال ووے تمام
چه راوړے وو جبرائیل علیه السّلامؑ
یهودی کلمه اووے مسلمان شو



په جمله تېرے فضل دَ سبحان شو
لوئ واړه مسلمانان اهلِ ایمان شو
دَ سردار ناموړ په دین روان شو
ښوک چه دا رنګه پیشوا لری دَ ننګ
موږ پرے بوراه شه چه کاندی ترینه ښنګ
چه دَ دا سے پاک حضرت شریعت پریدی
رواجونو او قانون ته قدم کیدی
خوا خر به دا سفله په خاورو خړ شی
لکه سپی به په دغه مرداره مړ شی
ښوک چه ګیره دَ کفارو پشان خرائی
ځان ته ډیر خه اُمتی دَ حضرت وائی
نه شرمیګی دا بے ننګ او بے غیرت
چه وه ګیره په پاک مخ دَ پاک حضرتؐ
دے کوی مخالفت له مصطفیٰؐ نه
ښوک به څه بیا موږ خیر دَ بے وفا نه
په خاطر دَ محمدؐ آخر زمان
خدایه وساتے له دے هر مسلمان
خدایه ته ورته غیرت زړه کښې پیدا کړے
په رشتیا ئے قربانی له مصطفیٰ کړے
الٰهی ستا دَ کرم دریاب روان دے
نه کمیږی په بخنه بے پایان دے

مونږه او بخی هرڅوک که ګنهګار یو
ستا له فضله له کرمه اُمید وار یو

طالبان خدایه په فضل عالمان کړې
دَ اسلام په خدمت کل مسلمانان کړې

پُرخطا **محمّد امین** ربه کریمه
په امان کړې پخپل فضل له رحیمه

---





# بله معجزه

## دَ خامارے متعلق

په نامه دَ هغه خدائے مِ دا تقریر دے
چه یو نوم ئے په نومونو کښې قدیر دے
جملئی ثنا صفت ده لره خائی
هم له ده سره خائی کبریائی
شریک نه لری غیوری دے هم صَمَدُ دے
پر ښتیا چه قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدُ دے
بیا درود په محمّد عربی وایم
په درود په تحیات سلامِ ستایم
په عدد دَ خدائے دَ علم دِ دی وو
وی هردم په محمّد احمد محمود
وسیله دَ ده نصیب شه په جنت کښې
خدایه مونږ ترے جدا مکړے پرقیامت کښې
راشه داوره مسلمانه غوږ پرے کیده
دَ دُنیا خبرے خوشے واره پریده
معجزه دَ محمّد عربی وایمه
په واللّٰه چه ئے رښتیا دَ دی ګدایمه
ګدائی خوئے بے شانه لوئے منصب دے

زه ئے نه یمه لایق فضل د رب دے
گرد نئ که ئے د سپو شئ را پغاره
پرے ورنه به کرم والله جهاند دواړه
زه خو سپے یمه چه سپے د ده د سپو شم
خدایه زه دِ ئے پائمال د سپو د خپو شم
معجزه به درته اوس کړمه بیان
که مدد را سره وکړی پاک سُبحان
یوه ورځے پاک نبی خیر البشر،
د لولاک مبارک تاج ئے وو پر سر
صحابه رض ترینه چاپیره لکه ستوری
خدایه زه ئے حُماد لے وی پسے خوری
ناکهانه رابنکاره شولو یو ځوان
د عربو خائسته یو پهلوان
ده نیولے په یو لاس توره آبداره
پر کس لاس کښے ئے تیلئے وه حمایاره
د خرمنے په تیلئے کښے وو یو شیز
چه پټ کړے ئے له دوئے دو په تمیز
چه تولی تر را انزدے د مصطفے شه
په دا شان دے اصحابو ته گویا شه
محمد ص نبی پر تا سو کښے کوم کس دے
چه لیدلو ته ئے حُماسه ډیر هوس دے



د حضرت د اصحابو نه یو ځوان
شو را پورته چه د ده نوم وو سلمان رض
د غه ځوان ته شو گویا په دغه شان
چه پرانده را معلومیږی ستا چشمان
چه په ستورو کښے سپوږمئ د خوار لیسے
لیده شے نو شئ ته را غلے ئے له کومے
پاک حضرت چه په نظر د غه ځوان شو
همه تن ئے له هیبته په لرزان شو
بیائے اووے چه ته ئے د خدائے رسول ص
پیغمبر او د مولا په در قبول،
پاک حضرت ویل بنده هم پیغمبر یمه
راسته وائے په رښتیا غنی اکبر یمه
بیا ویل ځوان چه کومه درته سوال
معجزه را ته ښکنده کړه فی الحال
ابراهیم ع وو که موسی ع وو که عیسی ع وو
هر نبی د زمانے معجزه نما وو
ته هم ماته معجزه کړه را ښکنده
چه زه خلاص شمه د کفر له گزنده
او که نه شوه معجزه سر کنده ماته
په دِ توره به جواب درکوم تا ته
د دے توره به پتا کوم گذار،

زه لتا سره کومه دا اقرار

پاک حضرت ویل چه سوال کوه ئے ځوانه
زه به غوارمه مدد له پاک سبحانه
ځوان ویل اول ووایه په تمیز
چه ځما په دے تیلئ کښے دے څه څیز
که دِ زه کړم له دے حال خبردار
په رښتیا سره رسول ئے د غفار
دوباره راته ځما او خایه نوم
ځما نوم کړه په دا سے راته معلوم
پاک حضرت مراقبه شو یو ساعت
خدائے جبریل را وه لیګلو په سُرعت
پاک حضرت ئے کړو له حاله خبرداره
خدایه مائے قربانی کړے له پیزاره
چه د دے سړی نوم سوړ د پلارِ قیش
ستا به مخکښے چه حاضر دغه بدکیش
په تیلئ کښے ئے خماره وریته کړے
امتحان د پاره ستائے ده ١٧ ورے
یهودی چه پدا حال حضرت خبر کړه،
د تیلئ او د ناسے خبر ئے وی کړه
یهودی ظالم ویل چه جادوګرے
په ټولی د جادوګرو کښے افسرے



پاک حضرت ورته ویل یهودی واوره
زړه نه لرے کړه د کبر کښے خاوره
جادوګر نه یم رسول د پاک اکبر یم
له جانبه د مولا په دے خبر یم
اے ناپوه دا قدرت د پاک سبحان دے
چه پما باندے ئے کړے دا احسان دے
حیا وکړه چه بحقه پیغمبر یمه
جادوګر نه یم استاذے د اکبر یم
مسلمان شه یهودی چه خلاص له اُور شے
هسے نه چه پاتے دغه سے مختوی شے
یهودی چه پاک حضرت ته ملامت شه
بیا کویانه دوباره هغه ساعت شه
ویل چه ترکه په رښتیا سره رسول ئے
او په حقه د مولا په در قبول ئے
داوریته خماره اوس دِ راجوندئے شی
هم په تلو کښے دِ چالاکه ګرځندئے شی
ګیرچاپیره دِ لتا ځنے ګرځیکی
ګرزید وکے دِ له تانه قربانیکی
بیا کویا دے شی خماره په دے شان
چه په حقه ئے نبی آخرزمان
که خمارے وویل چه ته رسول ئے

نو ځما په سر او سترګو ته قبول ئے
ځما لویه قبیله ده همه واړه
ستا اسلام ته به په حقه کیدٔ غاړه
یهودی چه کړو تر سره دا کلام
خدائے را واسته ؤ جبریل علیه السلام
خدائے ویلی چه رښتیا ځما حبیب ئے
له هرچا ځئے په دی ځما قریب ئے
په خاطر ستا م پیدا کړه کل جهان
که ته نه وے نه به وو زمکه اسمان
ذات ځما لوئے غنی او بے پرواه دے
چه ځما دَ دره لرے شی خطا دے
ستا چه څه وی مُدعا وو وایه ما ته
په قدرت خپل به ئے کوم دا اے نیکذاته
چه سردار دَ مدینے واوریده پیغام
له طرف دَ خپل مولا شو په قیام
بیا له ډیرے عاجزئ سر په سجود شو
په ثنا باندے ګویا دَ رب معبود شو
بیائے وکړه په دربار دَ رب کښے سوال
چه اے خدایه ئے خبر ځما په حال
یهودی وائی خاماره دِ جوندئ شی
هم په تلو کښے دِ چالاکه ګرندئ شی



بیا دِ وکړی دَ سرور په شان خبرے،
چه صفا وی لکه سپینے ملغلرے
هم دِ اُووائی چه دا نبی رسول م دے
په رښتیا سره په در دَ رب قبول دے
چه حضرت لا سو نه پوره په دُعا کړه
ملائکو پرے آمین او مرحبا کړه
په تیلئ کښے شوه جوندی وریته خاماره
له تیلئ نه شوه را پورته په تلواره
له حضرت به چا پیره ګرځیده له،
هر قدم نه دَ حضرت قربانیده له
په حضرت باندے ولوستو سلام
له سلام سره ئے وکړو دا کلام
چه سرور په رښتیا دَ رب رسول ئے
په رښتیا باندے په در دَ رب قبول ئے
په رښتیا باندے نبی خیر البشر ئے
راسته ولے په رښتیا غنی اکبر ئے
دغه ستا دین دَ اسلام دے دَ خدائے دین
ستا له دینه چه خلاف کړی دے لعین
دَ لولاک مبارک تاج دِ په سر خوند که
خپل ګدا ته خو یو ځله مخ سر ګند که
ګړه خانسته دَ مُزمّل قبا په غاړه

قربانی دِ وی لتا جهانه دواړه
یو جلوه دَ والضحیٰ مخ ی ابسکاره کړه
دَ هجران غمونه ټول مِ آواره کړه
دَ واللّیل زلفے اوګدے پړ اوګو بریده
فرش دَ سترګو غوړه وم قدم پرے کیده
ګردنئے دَ سپو دِ غواړم په خوئ لویه
هر یو سپی له نشانه دَ خاوند بویه
خپل بیان بس کړه ته اے **محمد امینه**
مهربان مولا دے کړه وطن مدینه،
یهودی ته بیا ګویانه شوه خماره
اے یهوده بے یقینه نابکاره
چه له داسے پیغمبر معجزه غواړی
ځنګه ډیر په بے حیا مقام ولاړ وی
دا یو داسے پیغمبر دَ خدائے محبوب دے
چه منشه دے دَ جهان دَ خدائے مطلوب دے
په خاطر دَ ده پیدا دواړه جهانه
پاک خداوند کړه په خه شانِ واوره مانه
یهودی چه دَ خمارے دا خبرے
واوریدلے لکه سپینے ملغرے
زړی پخپو کښے راګذار شو دَ حضرتؐ
دَ افسوس نعره ئے وکړه ځو کرت



وے لتا نه مِ قربان شه پلار و مور
هم قربان مِ شه لتا دَ سترګو تور
ما ته وکړه معافی مُسلما نیږم
چه جوندے یمه لتا به قربانیږم
کړه ئے تیره کلمه دَ شهادت
مسلمان شولو په دین دَ پاک حضرت
دائے او وے لَآ اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰه
دے بحقه محمدٌ رسول الله
ورته وُخودل حضرت احکام دَ دین
دَ حضرت په برکت شه آفرین
په شمار دوه سوه څلور شپیته کسان
دَ هغے قبیلے شو مسلمانان
همه واړه دَ حضرت کلمه خوان شو
دَ حضرت دَ دین پلاړ باندے روان شو
الٰهی دَ خپل حبیب له برکته
مسلمان سړے خو مکړے بے غیرته
چه په شرم ئے اسلام نشی بدنام
غیرتی کړے دَ حضرت اُمت تمام
یوه بله عجیبه معجزه واوره
دَ کفارو په سر پریوزه دَ غم خاوره
په خاطر دَ محمدؐ آخر زمان

پیښبوی نه خدایه ورک کړې ظالمان

اې قلمه بس که ختمه د دُعا کړه

معجزه بیان دَ سروری اعلیٰ کړه

بیا خماره جړیدله په زاری زاری

له جړا ځنې ئې نه کیده قراری

وی ته وویل حضرت رسول الله

ولې جاړې اې خمارې کوې آه

څه سبب دِ دَجړا دې وایه ماته

دَجړا سبب دِ زړی اوخایه ماته

دې خمارې ویل سرداره څما حال

عجیبه دې سراسر ډک له ملال،

خدائې دِ نه کاندی بد بخت څما پشان څوک

څما حال غوندې دِ نشي سرګردان څوک

اُمتی زه دَ موسیٰ علیه السلام وُم

دَیونان په ټول وطن کښې زه نیک نام وُم

دَ تورٰیت په علم هسې مِ کمال وو

چه په درست یونان کښې ورک څما مثال وو

دَ تورٰیت علم همه راته حاصل وو

عالمونو کښې څما عِلم کامل وو

ما به ختم دَ تورٰیت کړلو مُدام

دا مِ کار وو دَ صبا نه تر ماښام



یوه ورځ چه ما نظر کړه په تورٰیت

ستا صفت مِ پکښې اولیدلو زیات

ځائې په ځائې پکښې لیکلې محمدؐ وو

یا حضرتهؐ یا صفت پکښې بې حد وو

چه به کومه پانړه ما را واړه وله

یا حضرته ما به ستا نامه لیدله

ما له راغلله کینه په هغه دم

چه موسیٰؑ له محمدؐ نه نۀ دې کم

ولې خدائې دَ محمدؐ کوې صفت،

په تورٰیت کښې ځائې په ځائې په ډیر کثرت

ما چاړه راواخسته په هغه دم،

چه صفت دَ محمدؐ به نه پریدم

چه نامه دَ محمدؐ به ورانه وُم

هغه ځائې به دَ موسیٰؑ نامه لیکم

چه مِ وکړلو دا کار ډک له ضرری

نوی مِ کیخوده کتاب لاړم بهر

چه صبا له مِ تورٰیت راواخستلو

محمدؐ نوم مِ بیا هغه ځائې لیدلو

هغه ما چه وو ستا نوم ترینه وران کړې

خدائې ستا نوم به هغه ځائې وو عیان کړې

ما ویل چه چا لیکلې دې دا نوم

دا سرے به کړمه مرکه شو معلوم
هغه ځائے م موسیٰ بیرته و لیکلو
په چاړه م ترینه ستا نوم بیرته کړلو
صبا بیا راغلم چه بیا م وُکتل
محمدﷺ نوم وو په هغه مقام خُکل
دَ غُصے نه شومه تاؤ لکه دَ مار
په وجود کښے م غُصے نکړو قرار
چه بیا دا نوم په دے ځائے کښے چا لیکلے
دا سړے خوړم یو ځلے او کتلے
دَ غُصے نه راغلمه په زور کښے
ماوے واچومه دا پا نړے په اُور کښے
ما چه پا نړو ته دَ سِوِلو اوکړو نیت
ناګهانه شو سُورے دَ پاسه چت
یو سړے شولو راکوز له هغه چت
زه ئے اونیوم فی الحال له ډیر هیبت
ډیر په قهر باندے وه نیوم له لاسه
وے چه داخه کوے بده خناسه
دَ مولا دَ دوست نامے وراندے وے ولے
چه مولا دی په قدرت خپلے لیکلے
محمدﷺ خو دَ خدائے دوست اوهم محبوب دے
دے منشه دَ کل عالم دَ خدائے مطلوب دے



همګی جهان دَ ده په مخ پیدا دے
هر بادشاه دَ ده په در باندے ګدا دے
بیائے له چته پس غُصے کړمه ګذاره
یا حضرته هغه دم شومه خماره
له هغے ځایه ځنګل ته اُو وتمه
په ځنګل کښے سرګردانه ګرزیدمه
زر اودرے پنځوس کلونه اوس ځما شو
دَ حضرتﷺ اصحابؓ ټول حیران په دا شو
دَ حضرت په دین قوی شولو یقین
خدایه اوبخښی عاصی محمد امین
دَ صاحب دکربوغےؒ دَ در فقیر دے
ځکه خوګ ئے له شکرونه تقریر دے
شریعت او طریقت ئے کړے نصیب
په خاطر دَ مدینے دَ پاک حبیبﷺ
بیا خامارے ویل سوال کوم حضرتهﷺ
سراسر ډک له نیکئ او برکته
چه ما ستا پخاطر خدائے بنی آدم کړی
خدائے لمانه ګناه عفوه په کرم کړی
چه بیا شمه بنیادم ستا پخاطر زه
په خدمت دِ تل ولاړ یمه حاضر زه
پاک حضرت لاسونه پورته کړه دُعا ته

عاجزی ئے وکړه ډیره خپل مولاته
وے چه خدایه په کرم او په احسان
دے خامارے ځنے جوړ کړے بیا انسان
ورله ورکړے هغه خپل صورت کریمه
اے رحمانه اے رحیمه اے قدیمه
له دُعانه چه فارغ شولو حضرتؑ
بیا خامارے له خدائے ورکړه خپل صورت
له خامارے نسئے پیدا بنی آدم کړه
دنبی په خاطر خدائے څومره کرم کړه
دنبیؐ په خاطر غوارمه کرم زه
که هرڅومره ملامت یمه اوکرم زه
مخ م خدایه دکرم په صابون سپین کړے
په امان مونږ د مکرونو د لعین کړے
هئے افسوس چه څوک لرداسے پاک حضرتؑ
نه شرمیګی وی به څومره بے غیرته
چه په غټو سترګو کړی مخالفت
له احکامونه د دغے پاک حضرتؑ
فیصلے کړی درواج قانون منظورے
خدائے دِ کړی په بیغیرتو میندے بورے
ګنده خولے په تمباکو او په نسوارو
لکه خولے دچا ګنده وی به مُردارو



بدبوئی ئے ځی له خولے بد رنګِ دارے
خدائے دِ هیچرے وه نه خائی دغه لارے
په ګنده خوله څنګ دپاک خدائے ثنا وائی
څرنګ نوم د محمدؐ مصطفیٰ ستائی
څرنګ خوری دا پاک طعام په دغه خوله
کیږی ډیره م له دوئ ځنے ګیله
جواری دومره ګناه لری بے باکه
که خبرشی ترے هرڅوک ورته به شاکه
لکه څوک چه شرمګاه ته د مور ګوری
دکتو شرم ئے دا چه څو به نوری
له زنانه به بل نوی خراب کار
خدائے دِ هیڅ مسلمان نکړی زناکار
له بے نمازه نه خنزیر غوختے امان دے
په کتاب کښے م لیدلے دا بیان دے
چه په لوی خور دُنیا اخلی نه شرمیګی
دغه کس به په دوزخ کښے اوغورزیګی
خدایه ټول مسلمان له بده کاره
په امان کړی د حضرت نبی دپاره
له ګناه توبه ګارهریو مسلمان کړے
ټول په لار د شریعت باندے روان کړے
کل پیران د طریقت او بخښی رب به

مکړے ما په طریقت کینے بے ادبه
دَ صاحب مبارک زیات کړے درجات
کړبوغه کړے په امان له کل آفات
دَ صاحبؒ اولاد خاونده بامراد کړے
هم په دین او په دُنیا باندے ئے ښاد کړے







# مُعجزهٔ دیگر

په نامه دَ هغه خدائے دا بیان دے
چه دَ پټو زړونو حال ده ته عیان دے
بے شریکه بادشاهی کوی توانګر دے
هر بادشاه ئے دَ جهان ګدا دَ دی دے
بے له ستنو ئے اُودی ولی آسمانونه
پیدا کړی ئے له خاورو دی کلونه
هم درود صلوٰة سلام په ډیر ادب
عرض کومه په سردار دَ کل عرب
دَ عرب و دَ عجمو هم سروی دے
غرض دا چه دَ لولاک تاج ئے په سر دے
هم درود دے وی په آل او په اصحابوؓ
ترابده وی خوشبویه تر ګلابو
راشه واوره مسلمانه دا بیان
چه قوی په آورید و دِ شی ایمان
ابوجهل دَ حضرتؐ نبی دشمن وو
تمام زړه ئے دَ کینے په بم پمن وو
دَ حضرتؐ سره ئے ډیره دشمنی وه
شپه او ورځے ده اخستے بے دینی وه

یوه ورځې پاک حضرتؐ ته شو گویانه
وې چه نن یو معجزه غوارم لتانه
زر شه او وایه پلاس کښې م څه څیز دے
چه لتانه م پټ کړے په تمیز دے
ته چه وائې د آسمان په راز پوهېږم
د جانب د مولا څخه خبر یم
څه ده اوس ځما پلاس کښې وایه څه دی
سستی ونکړے تندی کړه خایه څه دی
ابوجهل چه داشان اوکړه گفتار
ورته ووے د عرب عجم سردار
ابوجهله درته وایمه زه حال
دا چه لاس کښې دے نیولی دی سنبال
اوکه دغه څیز پخپله شی گویانه
درته وخائی خپل ځان واوره لسانه
بیا به ما گواهی ولولی په زوره
چه پخقه نبی د خدائے له لوره
ستا پلاس کښې دغه څیز وکړی گفتار
ابوجهل بیا به نه کوے انکار
ابوجهل وے که دا معجزه ماته
شوه څرگنده په رښتیا وایمه تاته
نو بیشکه محمدؐ ده چه رسول ئے



وېر پخقه د مولا په در قبول ئے
حضرتؐ اووے ستا پلاس کښې سنگریزے دی
پشماره شپږ تا نیولے په مزے دی
اوس د هرے سنگریزے واوره گفتار
چه ځما په نبوّت وکړی اقرار
نور پلاس د ابوجهل کښې فی الحال
سنگریزے په لوئے قدرت د ذوالجلال
ووے دا چه لآ اِلٰهَ اِلاّ الله
دے پخقه محمدؐ رسول الله
ابوجهل چه د کانړو دا گفتار
واورید لو کړه په زمکه راگذار
ظالم ووئیل حضرتؐ ته جادوگر ئے
چه په کانړو باندے هم کوے خبرے
بل به نه وی ستا پشانے جادوگرے
په ټولی د جادوگرو کښې افسر ئے
تورے خاورے ئے پسر کافر لعین شو
چه له داسے پاک نبی نه بے یقین شو
تورو خاورو له کافر په بد زړه لاړو
د دوزخ په اور کښې سوے ابد لاړو
د حضرت برکت اوگوره انصاف کړه
ته هم راشه بد وچارو نه زړه صاف کړه

راشه مه زه مخالف له شریعت نه
او ویریګه سختې ورځې د قیامت نه
چه صبا کوے ژړا افسوس ارمان
ولے نن نه منې حکم د قرآن
له قرانه قربانی شه مسلمانه
او ویریګه له قادر غنی سبحانه
توره لحد کړه په زړه یاد چه ستا وطن دے
تورے خاورے دے هغے کښے اغوستن دے
د زړه زنګ په عبادت سره جارو کړه
د ګناه مرض له زر توبه دارو کړه
چرته لاړه ستا خواګه یاران
چه بم یو تر بله ویل قربان قربان
تورو خاورو وخوړل تا به هم وخوری
په دنیا چه دی راغلی تول به ومری
بس دے یو مثال ته واوره که پوهیږے
غیرتی ئے او له خدائے ځنے شرمیږے
چه شیطان کړے بے شانه عبادت وو
په دربار کښے د خدائے ډیرے نزدیکت وو
ملائکو ته به ده کوو تعلیم
مرتبے ته ئے وو تیت عرش عظیم
حکم وشو ورته دا د رب کریم



سجده وکړه ته آدم ته د تعظیم
د سجدے نه د آدم علیه السّلام
انکار وکړه خدائے ته ئے وکړه دا کلام
خدایه تا له ما ډیر کړے عبادت ،
تا ته بیا به په سجده شم تر قیامت
خو آدم علیه السّلام ته نهٔ کوم زه
له آدم علیه السّلام ځنے خه یم زه
خدائے آدم علیه السّلام باندے غیرت کړه
طوق په غاړه ئے شیطان ته د لعنت کړه
خدائے ته خوږه چه ئے کړے وے سجدے
هغه واړه ئے خدائے کړلے بے فائدے
خوک به خرنګ ستړګے پورته له دے ننګ کړی
چه شیطان خوشحاله وی خدائے سره جنګ کړی
راشه او شرمیګه خدائے ځنے غیرت کړه
په رښتیا ځان امتی د پاک حضرت کړه
هلک نه ئے په جمله بدو پوهیږے
چه پوهیږے او له خدایه نه شرمیږے
ستا پښانے په بے ننګه بوره مور شه
چه غیرت په چا کښے نه وی خدائے ئے تور شه
چه اصیل وی اشارت ورلره بس دے
کوتک غواړی چه بد اصل کوم یو کس دے

خدائے دِ نکړی مسلمان سړے بد اصله

نصیحت له مشرانو څنے اخله

زه پنچپله ګنهګار او مخ تورن یم

شکر دا چه دَ ګناه په غم غمجن یم

خدایه تر دَ اسلام وُساتے حیا

ډیرو خلقو اسلام پریخو په دُنیا

دَ صاحبؒ پګړئ لرے خدایه دَ ننګ

تل ئے اوسه دا فقیر دَ دی ملنګ

کل اولاد ئے سرداران اوسه دَ دین

خاندان ئے همګی مه شه غمګین

بے نوا **محمد امین** ربه کریمه

په امان کړے له غارته له رجیمه



وَاٰخِرُ دَعْوَانَا اَنِ الْحَمْدُ

لِلّٰہِ رَبِّ

الْعٰلَمِیْنَ ٥



# سلسلۂ پیران صاحبان قادریہ
# از صاحب مبارکؒ کربوغہ
# تا آخر سلسلہ شریف

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ○ نَحْمَدُهٗ وَنُصَلِّیْ عَلٰی رَسُوْلِهِ الْکَرِیْمِ ط

جمله ثنا تا له لایقه په هر شان الله

هره ثنا له هر حامده په هر ان الله

زمکه اسمان عرش و کرسی یوه قطره هم نه ده

دومره فراخ بحر دے ستا دَ لوئے احسان الله

په محمدؐ دے هغه قدر چه وائی په ځان

کل مخلوقات ستا له ثنا دی عاجزان الله

بیا مِ مقصود په پاک محبوب باندے درود هر دم

هم په آل و په اصحابو بے پایان الله

ته په طفیل ستا دَ مردانو شے رضا مونږ ه نه

هغه مردان چه ستا دَ ځان دی عاشقان الله

ته پطفیل دَ کربوغے دَ مرشدِ ناموړ

په مونږ خوارانو رحم وکړه مهربان الله

دَ تبرک دَ پاره ئے اسمِ گرامی وایمه
محمد عمرؒ پکړئ دَ ننګ بحرِ فیضان الله

بیا په طفیل خدایه کریمه دَ تیراه صاحبؒ
چه نوم ئے پاک ولی الله دے عالیشان الله

بیا په طفیل خداونده دَ سوات صاحب
عبد الغفور صاحبؒ په مونږ وکړے غفران الله

یا الٰهی ته په طفیل دَ حضرت محمد شعیبؒ
مونږ په امان کړے دَ دارینو دَ خسران الله

بیا په طفیل دَ عمرزو دَ شیخ حافظ محمدؒ
له دے جهانه مونږه بوزے با ایمان الله

بیا په طفیل دَ حضرت شیخ محمد صدیق صاحبؒ
مونږ په ایمان او په اسلام کړے صادقان الله

دَ شیخ جنید پشاوریؒ ولی الله په طفیل
مونږ په امان کړے دَ مکرونو دَ شیطان الله

بیا دَ حضرت شیخ ملتانی رحمة الله په طفیل
په مونږه اوورے دَ خپل رحمت باران الله

بیا دَ حضرتؒ شاه عالمؒ دهلوی په طفیل،
نصیب حُمونږه پیروی کړے دَ قرآن الله

بیا په طفیل دَ حضرت شاه منور صاحبؒ
حُمونږه زړونه منور کړے له عرفان الله

بیا په طفیل دَ حضرتؒ شیخ شادوله صاحبؒ



حُمونږ نصیب کړے دولتونه دَ رضوان الله

بیا په طفیل دَ حضرت پیرانِ پیرؒ دستګیر
عبد القادر جیلانی شاه مردان الله

بیا په طفیل دَ حضرت شیخ ابوسعید مبارکؒ
په دوارو کونو باندے مونږ کړے سعیدان الله

بیا په طفیل باندے دَ شیخ ابوالفرح طرطوسیؒ
مفرحین کړے مونږ رحیمه هم رحمان الله

بیا په طفیل باندے دَ شیخ عبد الواحد تمیمیؒ
ته په توحید حُمونږ جاری لړے لسان الله

بیا په طفیل باندے دَ شیخ ابی بکر شبلیؒ
مونږ په امان کړے دَ ایمان له سختو زیان الله

بیا په طفیل باندے دَ شیخ جنیدؒ بغدادی
مونږ همه واره ستا دَ لارے کړے شیخان الله

بیا په طفیل باندے دَ حضرتِ سری سقطیؒ
مونږه په لار دَ شریعت لړے روان الله

بیا په طفیل دَ حضرت شیخ معروف کرخی صاحبؒ
حُمونږ نصیب کړے دَ جنت حورے غلمان الله

بیا په طفیل باندے دَ شیخ حضرت داود طائی
ته مونږه اوساتے له تاوه دَ نیران الله

بیا په طفیل دَ حضرت شیخ حبیب عجمیؒ
ستا حبیبانو څنګے مونږه کړے قربان الله

بیا په طفیل دَ شیخ حسن بصری صاحبؒ
ستا په دیدار حُمونږه پرانزے چشمان الله
بیا په طفیل دَ امیرالمؤمنین شاهِ عالمؒ
امام الاشجعین چه ستا دے پهلوان الله
اسد الله صف شکن حضرت علیؓ ناموی
خوار وخجل کړے دَ اسلام کل دشمنان الله
بیا په طفیل ستا دَ محبوب پاک محمدؐ مصطفیٰ
چه په یٰسٓ او په طٰهٰ ئې دے بیان الله
دَ لولاک تاج ورته په ډیر عزت په سر ایخے تا
دَ جبرائیل غوندے نامدار لری دربان الله
په سپین رُخسار په تورو زلفوئې قسم کړے تا
په مزمّل مدثر ډیر دے عالیشان الله
تر په ابروهم دَ دے خپل محبوب چه ګران دے تا
مونږ دَ زوال دَ ایمان کړے په امان الله
هردم قدم حُمونږه ستا دَپاره تداو ګرزه ئې
ته مونږه مکړے ګمراهان اهلِ طغیان الله
بیا په طفیل دَ جبرائیل علیه السلام مقرّب
مونږ عاجزان کړے ستا دَ درمقربان الله
لرے جاری بحرِ فیضان دَ کربوغې دَ صاحبؒ
چه مومی فیض ترینه همه اهلِ جهان الله
همه اولاد ئې با مراد او خادلرے خاونده



هر یو دَ دین دَ مصطفیٰ کړے پاسبان الله
خدایه په فخر دَ محمدؐ مصطفیٰ شاهِ عرب
مکړے خزان دَ کربوغې دا ګلستان الله
دا ګلستان دِ په ګلونو دَ وحدت پُراوسی
ورته رند یکس دشمنان دَ دین زاغان الله
عاصی فقیر **محمد امین** دَ خپل نبیؐ په خاطر
له دے دربارہ بهره مند کړے په خپل شان الله

## در صفتِ صاحب کربوغه شریفه

حمد بے حد بے حساب و بے عدد
قادری مطلق له خانی له ازل نه تر ابد
صد درود و صد سلام په روح دَ سیّد معتمد
اے دَ کربوغې شریفې صاحب مبارک المدد
هم په آل اصحابو دَ سیّد محمّد مُصطفیٰ
صد درود و صد سلام و صد تحیات و وفا
پس له دے دا سوال کوم ما خدائے دَپاره نکړی رد
اے دَ کربوغې شریفې صاحب مبارک المدد
اے چه په مسند دَ شریعت په عزت ناست ئې
اے چه دَ خوارانو بے کسانو په حق راست ئې
صاحبا والله غریب یم لطفِ تو با من سزد

اے دَ کربوغے شریفے صاحب مبارک المدد

اے چه زیبا تاج دَ ولایت دِ پسر خوند کوی
اے چه په زخمی جگر ستا خاورے دَ در خوند کوی
بهرِ ربِ صاحب اگر بر زخم من مرهم نهد
اے دَ کربوغے شریفے صاحب مبارک المدد

اے چه په غیرت دَ دین دِ غوک دَ سیالئ نه وینم
نا موس سردار هیڅ داغ ستا په جولئ نه وینم
تا دِ ننګیالے لری همدا سے پاک مولا صمد
اے دَ کربوغے شریفے صاحب مبارک المدد

مشعلِ دینِ محمد مصطفیٰ تابان او سے
ستا په فرقت وران جهان هر گز مشه رخشان او سے
آه ازان روزے که هجرِ تو جهان برهم زند
اے دَ کربوغے شریفے صاحب مبارک المدد

اے چه دَ عزت نشان دِ پورته په افلاکو دے
ستا وجود صیفِ خُدا دَ پاره دَ ناپاکو دے
سرکشی دینِ نبی از سیفِ تو خون مے خورد
اے دَ کربوغے شریفے صاحب مبارک المدد

زه فقیر به څه لتا قربان کړمه آقا حُما
روز و شب از جان و دل ارمان کوم آقا حُما
جان و تن چشم و جگر از خاک تو قربان شود
اے دَ کربوغے شریفے صاحب مبارک المدد



مُرشدِ والا حُما په روئ دَ سیّد مصطفیٰ
اے دَ ننګ آقا په خوئ دَ سیّد مصطفیٰ
بهرِ گیسوئے محمد یک نظر بر من رود
اے دَ کربوغے شریفے صاحب مبارک المدد

دَ همه پاکانو بزرګانو په خاطر سره
دَ محمّد مصطفیٰ په دین که قربان ما لره
آرزو دارم فدا سازم ز اسلام جانِ خود
اے دَ کربوغے شریفے صاحب مبارک المدد

یو نظر دَ مرحمت که وکړے سوئے این گدا
دَ رسول الله پخاطر دے چه محبوبِ خُدا
این غریب و خسته زیرِ بارِ ظلمت بر جهد
اے دَ کربوغے شریفے صاحب مبارک المدد

ستا دَ ننګ پکړئ نه قربان بینوا محمد امین
کړه په دے عاجز نظر برائے رب العٰلمین
گرچه هرچند بینوا هست این فقیرِ بے سند
اے دَ کربوغے شریفے صاحب مبارک المدد



## چند ابیات بطریقهٔ نصیحت برائے مسلمانان

ازخاکسار محمد امین موضع سلیمانخیل



بنده دَ یاره دَ مولا چه عبادت او نکړے
هیڅ خوشحالی به بیا په ورځ دَ قیامت اونکړے
ته پیدا کړے ئے مولا دَ بندګئ دَ یاره
فهم کوه چه په بدل ئے معصیت اونکړے
تاج دَ ایمان چه پاک سبحان درته پسر کیخولو
شکرګذار لیل و نهار شه بغاوت او نکړے
خدائے چه پیدا کړے اُمتی دَ محمد مصطفیٰ
دَ ده فرمان په دل وجان منه بانیت اونکړے
په لامکان ستا بخښنه له مولا غوختله
فرمان دَ دا سے مهربان کښے خیانت اونکړے
دا دَ اسلام پاک جامے چه خدائے دروا غوستلے
هیڅ مناسب نه دے په دے کښے نجاست اونکړے
رزق حلال خوره له حرامو ځنے ځان اوساته
لکه دَ سګ ځان مردار خور او بدخصلت اونکړے
ته چه پیدا شوے مخ دِ سپین وُو ګناه له خیری
راغلے پاک دروی ناپاک ترک دَ غیرت اونکړے
دَ ګناه زنګ دِ ذړه بدرنګ کړه زړه غوړ ئے اوکړه



شه توبه ګار کوه تلوار چه تړے غفلت اونکړے
دُنیا برباده نامُراده او ناخاده ده تل
دَ دے ناخادے نامرادے محبّت اونکړے
ستا پښتانه پرخاوروکړه زیر زهر ګنهږ شولو
کړے به ارمان او هغه سوران که عبادت اونکړے
نن چه قدم نکړے محکم دَ شریعت په میدان
صبا به سیل لورومانړو کښے دَ جنت اونکړے
خدایه دَ دین ننګ وغیرت هر مسلمان کښے واچے
دَ مصطفیٰ نبی اُمت خو بے عزّت او نکړے
ګل فرزندانو له م ته ورکړے طاقت او همت
خدایه په دوئ بے له اسلامه بل خدمت اونکړے
دَ کامل پیر دَ در فقیر اوسه محمد امینه
دَ خدائے په عون مخالفت له شریعت اونکړے

اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّاٰلِهٖ وَعِتْرَتِهٖ
بِعَدَدِ كُلِّ مَعْلُوْمٍ لَّكَ ط

## عریضه

### درخدمت سردار مدینه منوره صلی الله علیه وسلم

نن به لاړشی مدینے ته برابر څوک
چه خبر کاندی دَ دوؤ کونو سرور څوک

له عون امداد ۱۲

له نقابه مخ بیرون کړه محمدﷺ صلی الله علیه وسلم
ستا له مخه قربانی کړه مولا هر څوک

هغه ستا عمارت نن په پریوتو دے
معمارانو ځنے نکړی پرے ګذر څوک

هغه ستا په اوخوتاند بوټی اوچیګی
باغبانانو ځنے نکړی پرے نذر څوک

هغه ستا بیړئ نن ګیره ده ګرداب کښے
بے لتا به دا بیړئ نه کا بهر څوک

غرض دا خیر الامت دِ خوارو زار شه
بے له خدایه نه لری غمخور بشر څوک

ګریبان سیرے کړه په دردرب حضرته
ستا پشان نیشته قریب دَ خدائے په دَګر څوک

صداقت دَ پاره بیا صدیق رض پیدا شوے
عدالت دَ پاره بیا مثلِ عمر رض څوک

حیاناک مثل عثمان رض چرته یو بل وے
شجاعت دَ پاره وے مثلِ حیدر رض څوک - (حیدر)

صحابه رض هر یو دَ ننګ او غیرت کان وو
چه بل نه وو په جهان ترے دلاور څوک

دَ اسلام نشان په موږ پورته کړے رب
چه اونهٔ خاندی اسلام پورے کافر څوک

په بنا دَ کفر خدایه زلزله کړے



برباد مکړے مسلمان دَ دوئ په شر څوک
دَ صاحب دَ کربوغے دَ در فقیر دے
که نه وی محمد امین ځنے خبر څوک

## دعا بدرګاه مجیب الدعوات

له غلامئ ځنے آزاد مسلمانان کړے ربه
دَ سردارئ لائق دی بیا ئے سرداران کړے ربه

دَ غلامئ نه ورته کرکه کړے پید اپه زړه کښے
بیا ئے په لاره دَ سیا لئ باندے روان کړے ربه

دَ شریعت رسئ دَ دوئ پغاړه ته واچوے
ته دوئ پلاړ دَ شریعت باندے پوهان کړے ربه

دَ صداقت او اتفاق په بام ئے ته او خیجے
په اتفاق مسلمانان دَ کل جهان کړے ربه

یا الٰهی خیر الامت دَ دے حضرت مصطفیٰ
ته پیرے خوشحاله محمد آخر زمان کړے ربه

دَ مدینے منورے دَ مصطفیٰ په خاطر
تر و تازه بیا دَ اسلام دا ګلستان کړے ربه

چه دَ اسلام پکار شرمیګی ورته عار ښکاری
دغه ناپوه سړے پوئ په خپل احسان کړے ربه

چه ګیره خرائ دَ کفارو په لباس کړی فخر
ته غیرتی له فضله خپله دغه ځوان کړے ربه

چه دَ نبیؐ په مخ غیرت اوکړی اوکیږه پریدی
هم دَ کفارو په لباس باندے خپیمان کړے ربه

چه دَ کفارو په تعلیم خپلے وینی توئ کړی
ته دَ قرآن په طرف هم دَ دوئ چشمان کړے ربه

له اسکولونو مدرسو ځنے را اوباسے ته
پنځپل مکتب کښے ئے طالب دَ خپل قرآن کړے ربه

دَ غیر قانون دفعے ترے هیرے کړے کرم پرا وکړے
دَ شریعت قانون ئے دین اوهم ایمان کړے ربه

دَ مدینے دَ مصطفیٰؐ نبی نامدار په خاطر
دَ حق دَ پاره عالمان کل طالبان کړے ربه

دَ مدرسو اسلامیه وُ ته آبروئی نصیب کړے
فیض خوره وُنکی ئے په فضل عالمان کړے ربه

دَ دین دَ وارو طریقو چه دی پیران صاحبان
دَ دوئ فیضان په کل جهان باندے باران کړے ربه

پګړئ دَ ننګ او دَ غیرت ځمونږ صاحب مبارکؒ
خوږ په همه جهان دَ ده بحرِ فیضان کړے ربه

کل خاندان ئے په امان له هر آفت اولرے
جمله اولاد ئے سرداران دَ دین پیران کړے ربه

خدایه په مخ دَ محمدؐ رسول الله عربی،
محمد امینؒ تیر له دنیا نه مسلمان کړے ربه



هم ئے مغفور کړے مور او پلارؒ او هم دوستان دَ اسلامؐ
مسلمانان تیر کړی امانِ له شیطان کړے ربه

○

ته دے کاتب فقیر عاصی باندے احسان اوکړے
په ځنکدن کښے ئے له غارته په امان کړے ربه

# دَ رے ګوهره بے بها

دا دُرے ګوهره بے بها واخله که ځوان ئے ګله
که په دښتیامین په ډیر شکلی جانان ئے ګله،

که محمدؐ رسول الله محبوب ډیر ګران وی پتا
دَ دے محبوب له عشقه تیر تر مال وجان ئے ګله

دَ عاشقئ دَ ګلستان دا ډیر خوشبو ګلونه
الله نه غواړه که دَ مینے پهلوان ئے ګله

شرعی[1] جوندون خوئے دَ محمدؐ مصطفیٰ عربی
ترمرګه پرے ټکد ے که خکلے مسلمان ئے ګله

اظهارِ[2] نورِ ایمانی باندے ډیر غور او فکر
پخته اوکړه که ډیر خوخ په خپل ایمان ئے ګله

دریم[3] ګوهر بے بها شکر په ایمان دے رُوره

بښکلی طالب که دَ وصال دَ ګلستان ئې ګله
که اِیمَانًا اِحْتِسَابًا پحقه نیت دِ خه وی
هرنادوانه به په حقه روګردان ئې ګله
که صغیره ګناه کوے بے عُذره بیا بیا مه ام
ځوان نه ئے خوشے بے هوده خوشے انسان ئے ګله
رب العزة دِ شه هادی خوار محمّد امینه
په صداقت چه خوګورونړو ته ګویان ئے ګله

---

از کتاب ( فتبارک الله احسن الخالقین )
قلمی اصل مصنف صاحب

## تمّت بالخیر

---

دا کتاب په دے پته هم ملا یګی
(۱) نور کتب خانه هری چند روډ بازار عمرزی
(۲) مولنا سید نظیر صاحب مکتبه فیض الاسلام
رحمانیه مارکیټ محله جنګی قصه خوانے بازار
پښاور شهر



| | |
|---|---|
| دَ دوارو جهانو نولذتونه ترے نثار | جریګی عاشقان دَ محمّد رسول الله |
| الله دَ محمّد امین نصیب کوے ستا رضا | په دیر ښکلی بیان دَ محمّد رسول الله |

## روښدا ره محبوبه

والله هزار هزار د عالمه به دِ له ښکلی پا ئزار د دَ پښو مبارکو نه زار او قربان کړم۔ ته چه میدان محشر دَ شفاعت کمربند ترملا کړے او جلوګر شے۔ نو هزار هزار اخترونه دَ دغه محشرنه زار او قربان شه۔ ماشاء الله لا قوة الا بالله العلی العظیم ط

| | |
|---|---|
| والله څما جانان دَ محمّد رسول الله | بے حده پما ګران دَ محمّد رسول الله |
| چه دوا ړه جهانونه ئے روښانه دی په مخ | داشان ماهِ تابان دَ محمّد رسول الله |
| چه مثل جبرائیل ئے کوی فخر په خدمت | سردار عالیشان دَ محمّد رسول الله |
| په شمیر دَ رب دَ علم دِ ئے نصیب شی خیرجمال | محبوب دَ پاک سبحان دَ محمّد رسول الله |
| هزار هزار عالمه به ئے نثار کړم ترپائزاره | والله خوخ م داشان دَ محمّد رسول الله |
| دَ رب دَ بے انداز علم په شمار کړمه اقرار | څما دین وایمان دَ محمّد رسول الله |
| هزار هزار اختره دِ ؤ زار تردا محشره | ښکښے چه ماه تابان دَ محمّد رسول الله |
| سیرابه به شی تږی دَ محشران ترابد | کوثر ته راروان دَ محمّد رسول الله |

الله دَ محمّد امین په مخ د محمّد صلی الله علیه وسلم
سوال تا ته په هر ان دے محمّد رسول الله
کما هو اهله ویحب ویرضی

---

## مختاره محبوبه

دَ مرسلانو د محفل دیر عزیز او شریف صدر العلیٰ دومره را باندے ګران ئے چه هزار هزار عالمه به دِ په درلوګے کړم۔ دَ رب العزة جل جلاله دَ بے انداز علم په شمیر م تل اقرار او ایمان او باور دے۔ چه په حقه پیغمبر اشرف المرسلین ئے